# د رڼا رنګونه



لکه د شمعې سوزېدم خو بلېدمه څکه
ما خؤروله په تیارو کښې د رڼا رنګونه

محمدالیاس

# ټول حقوق دَ شاعر سره خوندي دي

دَ کتاب نوم ـــــ د رڼا رنګونه

لیکونکے ـــــ محمد الیاس

موبائل ـــــ 03462860464

اي میل ـــــ milyaskhan37@gmail.com

تعلیم ـــــ ماسټر میرینز

پیشه ـــــ جهاز راني/ میرین کنسلټنټ

استوګنه ـــــ طوطه کان ملاکنډ

چاپ کال ـــــ دسمبر ۲۰۲۲

شمېر ـــــ ۵۰۰

چاپ خانه ـــــ اعراف پرنټرز محله جنګي پېښور

کمپوزر ـــــ عابد خان (0311-9279166)

ځیر کتنه ـــــ پروفیسر رفیق یوسفزے

ټائټل ـــــ سجاد روغانے

بیعه ـــــ ۲۵۰ روپیۍ

د لیکوال چاپ کتابونه ـــــ شورمي د قلم په ژبه راوله شاعری ۲۰۰۸

د موندلو درک:

❖ طوطه کان ملاکنډ

# ترون

د خپل مور او پلار په نوم د چا د مينې
او تربيت د وجې چې زۀ نن په دې ډګر
ولاړيم چې په جهازرانۍ کښې د ماسټر
ميرېنر د جوړېدو سره سره د خپل پښتون
قام او پښتو ژبې د پاره د کتاب د ليکلو او
چاپ کولو جوګه شوم.
لويه خدايه زما په مور او پلار دواړو
باندې خپل رحم اوکړې امين

# بسم الله الرحمان الرحيم

## "الياس د خپل فن په هنداره کښې"

دردونه ئې رانغښتي په خوږو خوږو نغمو کښې
راؤړي ئې شراب دي د ګلاب په کټورو کښې
راهي څوک د رنګونو سوداګر ويشي رنګونه
راکوزې ښاپېرۍ شوې د رڼا په پلوشو کښې

ژبه، ادب، کلتور او ثقافت د هر قوم د قومي اډانې بنيادي ستنې هم دي او پېژندګلو هم.

کوم خلک چې د خپل قومي تشخص برقرار ساتلو لپاره دې بنيادي ضرورتونو له توجه او اهميت نه ورکوي. هغه قوم د خپله لاسه د تباهۍ، بربادۍ، ذلت او رسوايۍ ژؤرې کندې ته اوغورزيږي.او بيا د دغه توراو پېغور نه د ځان خلاصؤلو په غرض خپله ګناه د تقديرپه مخ د ورتپلو کوشش کوي. ځکه چې د داسې خلکو سره د خپلې ګناه نه د تېښتې لپاره دغه يوه لنډه او اسانه لار وي.

د نورو قومونو ژبې فقط د خبرو اترو ذریعه او قومي پېژندګلو پورې محدود وي. خو پښتو نه یوازې د خبرو اترو ذریعه او د پښتون قوم پېژندګلو ده. بلکه د ننګ ، ناموس ، پت ، غېرت ، کلتور ، ثقافت سره سره د پښتنو ځلنده تاریخ او کوډتلې دستور هم دے. ځکه خو پښتون قوم ته په تاریخ کښې هغه ځانګړے مقام حاصل دے. کوم چې د نورو قومونو په نصیب کښې نشته.

پښتون په کلهمه نړۍ کښې د نر ، فاتح او موجد قوم په حېث ډېر اوږد او زوړ تاریخ لري. خو د دې هر څه باوجود ئې لا تر اوسه پورې د وخت د ضرورت مطابق هغه پرمختګ نه دے کړے. کوم چې د دې قوم حق هم دے. او شان هم.

زه چې کله هم د پښتنو دې ستونزې ته فکر کووم. نو د پښتنو د ستر لاربنود او خدائي خدمتګار اروا ښاد باچا خان بابا هغه وېنا رایاده شي

"کوم قوم ته چې خپله ژبه سپکه شي نو هغه قوم سپک شي. او د کوم قوم نه چې خپله ژبه ورکه شي نو هغه قوم ورک شي. "

د پښتو ژبې او ادب په اړه دې دومره اوږد تمهید ته یؤ نو ګل بوټي اولمسؤلم. کوم چې د پښتو ادب په سمسوره باغیچه کښې زما د زرخېزې او ګل ورینې ادبي سیمې (طوطه کان) زما ګران او قدرمن کشر خوږ ژبي شاعر او سترګه ؤر ادیب ښاغلي محمد الیاس نوے نوے نال کړے دے۔

دغه ګل بوټے ( د رڼا رنګونه ) نومې شعري ټولګه ده. الیاس پرې زما نه د لیک غوښتنه کړې ده. ناوزګاره هم یم او ناراست هم. خو یؤ خوا راباندې الیاس ډېر ګران او نازؤلے دے۔ او بل خوا د پښتو ادب د یؤ ادنٰی خدمتګار په حېث د انکار جرات هم نه شم کؤلے نو راځئ چې په شریکه د الیاس د رڼا په رنګونو کښې د هغه د فکر د ښاپېرو د ګډاګانو ننداره اوکړو.

د دې شعري ټولګې د سرسري لؤست نه راته معلومه شوه. چې الیاس د شعر هغه دؤو بنیادي او اهم ضرورتونو ته په خصوصي توګه پاملرنه کړې ده. کوم چې د ښه او معیاري شعر لپاره د روح په څېر اهمیت لري.

۱. یو د شاعر فکر
۲. دویم په شعر کښې د اولس لپاره کؤټلے او حقیقت ته ورته پېغام........

د وزن ، بحر ، قافيې ، رديف ترتيب او دوا ړو مصرعو تړون ته بېشکه چې شعر وئيلې شي. خو که د مناسب مفکورې او مؤثر پيغام نه خالي وي. نو ښه او معياري شعر ورته نه شو وئيلې.

"د رڼا رنګونه " يؤه داسې شعري ټولګه ده. چې د شعر د هر توري نه ئې د فن بلها بلها رنګونه څاڅي. او د مثالي شاعرۍ په تله ئې تللې شو.

الياس د ادبي ميدان هغه شهسوار دے. چې د روايتي او تقليدي شاعرۍ نه ئې بيخي ډډه کړې ده. د جمال او جلال سره سره ئې د فلسفې ، تصؤف ، روحانيت او څېړنې په ګرانو ، لؤړو ، ژؤرو ، او ازغنو ميدانونو کښې د خپل فکر نيلے زغلؤلے دے. هسې خو دا ټول دومره ګران او ټپ موضوعات دي. چې زما غوندې ناپوهه او کم علمه لپاره د ظاهري معنې نه علاوه د دې موضوعاتو مفهوم او روح ته رسېدل ډېر ګران دي. څکه چې درياب په کوزه کښې بندؤل او بغير د څه وسائيلو د سمندر په تل کښې لعلونه لټؤل د هر چا د ؤس خبره نه ده.

زه حېران يم. چې د دې هر څه باوجود الياس که يو خوا د خپل فن په زور د ظلم او بربريت د توري بلا په مرۍ د خپل قلم څوکه لکه د ايرانۍ تورې ورخښه کړې ده. نو بل خوا ئې د خپل فن

په نازکو ، مرمرینو او مهینو ګوټو د خپل زپلي اولس احساسات د سکوندلو په ځائے تبنئولي او بیدار کړي دي.

کومې سترګې چې د ظالم په ضد د اور بڅري ورؤلے او د مظلوم په غم کښې اوښکې څڅؤلې شي. د هغه سترګو نظر او د هغه سر فکر د فلسفې ، تصؤف ، روحانیت او څېړنې درانه پیټي هم په غېږ کښې ګرځولے شي.

په دې موضوعاتو اکثر شاعران او ادیبان له دې ویرې قلم نه راپورته کوي. چې د فلسفیانو ، پوهانو ، سترګه ؤرو او عالمانو نه علاوه د اولس عام وګړي د لیکوال د نظر ژؤروالي او د هغه د فکر الؤت ته نه رسي. او دغه زړؤرتوب د هغه نوم ، شهرت او شخصیت ته زیان رسؤلے شي. د دې حقایقو نه معلومیږي. لکه چې الیاس د جوارۍ دا داؤ هم د خپلې خود اعتمادۍ، لؤړو حوصلو او اوسپرینو ارادو په زور لوبؤلے او ګټلے دے.

په اسانه ، روانه ، پسته او خؤږه ژبه په اثرناک ډؤل د خلکو پوهه کؤلو ته ادب وائي. که چرې د ادب په چوکاټ کښې د الیاس ادبي څېړې ته په غؤر او کتلې شي.

نو معلومیږي چې الیاس د یؤ استاذ شاعر سره سره تکړه ادیب ، پوهان او سترګه ؤر هم دے. ځکه خو د فلسفې ، تصؤف او

روحانیت نه ناخبره عام وګړي هم د ګوټې نیولې د خپل فکر تر بام او مرام د ځان سره همغاړي بیایي.

فن د فنکار د ذهني معیار تله او د هغه د فکري الوټ هنداره وي. ما د الیاس د فن په هنداره کښې د هغه څو تصویرونه اولیدل. او هغه دا چې.......

- ❖ د پښتو ادب د اسمان دا ځلیدونکے او پړقیدونکے ستورے د نوښت زېرے او د پرمختګ علامت دے
- ❖ هغه انسان دے. چې د انسانیت تبلیغ ئې خپله وظیفه ګرځولې ده
- ❖ هغه شاعر دے۔ چې د پښتو ژبې ، ادب او پښتنو خدمت ته هر وخت چمتو ولاړ دے۔
- ❖ هغه لیکوال دے۔ چې د خپل قلم د تقدس خیال ئې ساتلے دے۔
- ❖ هغه فنکار دے۔ چې ساندې نغمې کؤلے شي
- ❖ هغه انځورګر دے۔ چې احساسات ، جذبات ، حالات او واقعات په خپل حقیقي شکل کښې تصویر کؤلے شي
- ❖ هغه دهقان دے۔ چې په لمبو کښې ګلونه راټو کؤلے شي
- ❖ هغه احساس دے۔ چې هر غم او درد پاللے شي.
- ❖ هغه لیونے دے۔ چې د هوښیار عقل تللے شي.

❖ هغه لاروے دے۔ چې په سکرؤټو تګ کؤلے شي.
❖ هغه منصف دے۔ چې د حق لپاره د باطل سره ډغره وهلے شي

الياس د يؤ سوچه پښتون او قام پرست شاعر په حېث د پښتني کلتور او رواياتو د پولې نه چرې هم د ګام اړؤلو هسه نه ده کړې.د شعر معنې ئې د خپلو خواهشاتو تابع کړې نه ده. بلکه خپل خواهشات ئې د شعر د معنې تابع کړي دي. که د تورو ، غټو او شرابي سترګو صفتونه ئې کړي دي۔نو د اوښکو ډکې سرې سترګې ئې هم ستائيلي دي که د رانجو او کجلو ذکر ئې کړے دے۔نو د کچه کوټو لوګي ئې هم ياد کړي دي.

که د ګلونو او سپرلو صفتونه ئې کړي دي. نو په ګلرنګه پرهرونو ئې هم قلم راپورته کړے دے۔

الياس د ژوند خواږه او تراخه ټول حقيقتونه د فن په ځولۍ کښې سنهبال کړي په سينه پورې نيؤلي دي. هم دغه ئې د ژوند سرمايه ، د خواهشاتو تکميل او د روح تسکين ښکاري.

"د رڼا رنګونه" د لعلونو خزانه او د هيرو ، جواهراتو ناپاياوه سمندر دے۔خو لټون له ئې علمي او ادبي پوهه ، د باز په شان تېز ، تېره او باريک نظر ، د لفظونو روح ته د رسيدو فن او ډېره سترې غواړي.

شاعري د جذباتو ، احساساتو او د خپل چاپېریال د واقعاتو او حالاتو د انځورګرۍ نوم دے. خو د الیاس فن پسې د خپل څادر نه هم پښې ویستلې دي. او د پوره کائینات نه ئې غېږه راتاؤ کړې ده.

د الیاس د فن مثال د هغه سرکشه اس دے چې د ښه شهسوار نه علاوه بل هیڅوک هم په خپله شا نه پرېږدي

د هغې دلیل دا دے چې........

چې کله هم څوک لیکوال په شعري ټولګه لیکل کوي. نو په خپل لیک کښې ځائ په ځائ د هغه شعري ټولګې نه شعرونه را اخلي. او د هغې په رڼا کښې خپل لیک په وړاندې بیایي. دغه رنګې لیکوال ته د دغه شعرونو په مدد نه یوازې لیک اسان شي. بلکه چې څومره غواړي.

هغه هومره ډېر لیکل پرې ښه په اسانۍ او خلاص مټ کؤلې شي. د الیاس فن د دغه اسانۍ او دهوکې مخ نیوے کړے دے په لیک کښې د اندام اندام کیدو لپاره ځان نه ورکوي. د فن دغه سرکشي او خود سري ئې لا د تماشو ده.

د الیاس فن د بوډۍ د ټال په څېر بلها بلها رنګونه لري. د خپل فن ښاپېرۍ ئې د رنګونو په دغه ټال ځنګؤلې دي. د ادب د اسمان په لمن خور د بوډۍ دغه ټال ته ئې د سرونو نه ټوپې لوېږي.

د رڼا رنګونه "د پښتو ادب په باغ کښې یؤ داسې نوے ګل بوټے دے چې د خپل ناشنا رنګ او عجیبه خوشبویۍ له کبله خپل اهمیت پخپله په ګوته کوي.

دا شعري ټولګه په سپین کاغز د مینې ، رورؤلۍ ، پښتو ، پښتونؤلۍ ، پت ، ښېګړې ، تورې او وفا بلنه هم ده. او د زخمي انسانیت ، ژوبل احساس ، بندیوانو روحونو ، او شهیدانو د وینو نؤستي رنګونه هم دي.

د جبر په تیارو کښې او د بارودو په لوګو کښې ورکو شوو شوکیدلو قافلو ته لکه د اور اورکي لار هم په ګوته کوي. او د اسرافیل د شپېلۍ په څېر مړو ضمیرونو ته ژوند ، بیمار ذهنونو ته شفاء او خوبؤلو ته بیداري هم بخښي.

د شعور د رڼا پلؤشې هم دي. او یؤ داسې نالیدلے لاس هم. چې ځوانې جذبې ، ولؤلې او د پښتنې وینې غورځنګ په شا ټېوي. داسې ښکاري. لکه چې د دې شعري ټولګې خالق د ظلم

، وحشت او بربريت په تورتم کښې هم د خپل انجام نه بې پروا د سپين سباؤن او روښانه مستقبل په هيله د انسانيت ، مينې او رورؤلۍ تخمونه کري.

لکه د بليدونکي شمعې ځان ويلي کوي. او د معاشرې په تورتمونو کښې رڼا خؤروي.د ځان ، جانان او جهان سره سره ئې د کلهم انسانيت هغه ذمواري هم په سر اخستې ده. چې غرونه ئې هم د بوج زغملو توان نه لري. دغې ټولئيز فکر دا شاعر د انسانيت د معراج په بام اودرؤلے دے۔

د خپل فن په نيلي سور او د خپل فکر توره په لاس د باغي روحونو دا سالار په يؤه داسې مبارزه کښې بوخت دے۔ چې مرګ ترې هم امان غواړي.

د حق او باطل په دې معرکه کښې ګټه او تاوان دواړه د دوئ کاميابي ده. که ميدان ګټي نو غازي کيږي. او که ميدان بائيلي. نو د شهادت لويه مرتبه تر لاسه کوي. په هر حالت کښې ځان د تاريخ په صفحو کښې ځائيوي. او باطل ترې لرې ساتي.

ما غوښتل چې د الياس د دې شعري ټولګې نه د بېلګې په توګه څه شعرونه رانقل کړم. خو د رڼا کوم کوم رنګونه به

راټولووم. او بله دا چې دا لیک به د ضرورت نه زیات اوږد شي. نو انتخاب په لؤستونکو پرېږدم. او په دې مصرعه به ځان خلاص کړم. چې.........

ستا د ښایست ګلونه ډېر دي
جولۍ مې تنګه زه به کوم کوم ټولؤومه

لنډه دا چې الیاس د لفظونو جادوګر او د رنګونو سوداګر دے. په هر لفظ کښې ئې روح پوکلے او په هره بدرنګۍ ئې د خپل لازواله فن رنګ شیندلے دے. خپل زړۀ ئې د خپل عقل په زنځیرونو تړلے او خپل فن ئې د خپل فکر په تالونو ځنګؤلے دے. پاکه ، سوچه او سپینه سپېڅلې شاعري ئې کړې ده. د امن دې مبلغ د جبر د تبر ګزارونه هم د مالوچو په پوسو رامنع کړي او پس کړي دي.

هر انداز ئې ښکلے ، زړۀ راښکونکے او د ستائینې وړ دے. د دې شعري ټولګې په لمن کښې چې ئې څومره څه راځائے کړي دي. د عقل نه بهر او د نه منلو خبره ده. که چرې په شعر پوهیدونکي لیکوال اوغواړي. نو په دې شعري ټولګه غټ غټ کتابونه لیکلے شي.

هم په دې ځائے خپل لیک راغونډؤم. او دا دعا کووم.

چې ....... الله پاک دې د الیاس په ژوند کښې برکت او د هغه په قلم کښې د دې نه نور زیات زور او شور واچوي. چې د خپلې ژبې ، ادب او قوم خدمت ته د غسې ملا تړلے او چمتو ولاړ وي.

آمین یا رب العالمین

په درناوي
او
پښتنه مینه
نعیم راهي
ریاض سعودي عرب

# نعت

بې خبردې وې د ځانه خير بې حال وې محمده ﷺ
غوړيدلې چې دي زۀ په روضه شال وې محمده ﷺ

خوش بخته خوش نصيبه د دنيا به وومه خدائيګو
تقدير کښې که مې ليک د قرني فال وې محمده ﷺ

اې کاش چې د طائف په کاڼو زه وې لګيدلې
چشمانو کښې مې خبر که پشکال وې محمده ﷺ

ارمان به مې بيا څه کوو ارمان خو زما دا وو
غوښتلې دي روضې ته کال په کال وې محمده ﷺ

اې کاش چې ديوانه وې ستا د مينې لېونې وې
دنيا ته دي الياس به جوړ مثال وې محمده ﷺ

# غزل

لکه د ګل په باغ کښې ګله موسیدلے ښۀ وے
زما جنونه زما ځانه خندیدلے ښۀ وے

په تامې نه ؤسود چې ستا په زړۀ دي غم راشي
د خیال محل کښې ښا پیرے مې ګرځیدلے ښۀ وے

زه د جانان سره لګیا وومه په سترګي ماښام
هوشه په دا وخت مې د هوشه تختېدلے ښۀ وے

ستا بیلیده مې د زلمي احساس خوښ شوي نه وو
د زړۀ ارمانه د پخوا نه رژېدلے ښۀ وے

ګرانه دا څه په ډاګه شوکي د خوبونو کیږ ي
ما مې د زړۀ پورې نیولے وے نیولے ښۀ وے

ته چې د بل سندرې وائې ته چې بل یاد وے
پښتو دې هېره کړه پښتونه نړیدلے ښۀ وے

څه له رخصت رانه د تلو اخلې په نیمه لار کښې
د زړۀ په کور مې راوریږې ته راغلے ښۀ وے

خلقو ویئله چې ساده دے خو حیا وه پکښې
الیاسه خبر دے د جانان مخې ته غلے ښۀ وے

# څاڅکي

ناڅاپه په اسمان کښې
انقلاب له کومې راغے
دالله رحمت په جوش شو
یخ یخ باد له کومې راغے

غونډه ؤشوه د وریځو
په رڼا ورځې تیاره شوه
اخوا دېخوا په اسمان کښې
چارچاپیره راخواره شوه

د ډیر قهره پړقیدله
د ګزار کؤلو نه وه

خو یو بل ته غوریدله
په جهان یې دبندیانو
بمبارې کول غوښتله
سیلۍ راغله په فریاد شوه
خو وریځو نه منله

ناګهان یو څاڅکے بیل شو
د وریځو نه جدا شو

ښکاریده چې مرور ؤ
ډېر په منډه په هوا شو

ورسره ګورئ ملګرو
څومره نور ځاځکي روان شو
د ملګري ملګرتیا کښې
د اجل په لور روان شو

دلته زمکه ورته تږې
دلته ټول زنده تنګ شوي
ژاړې بوټي تږي تږي
ځناور هم جل ؤهلي

ځاځکي ګام په زمکه کېښود
ګورئ جوړ ترینه باران شو
زمونږ زمکه ئې ژوندۍ کړه
دے د مرګ په لور روان شو

(پېښور ـ ۱۹۹۷)

## کاش (هائیکو)

داسې سرعام به ترهه ګر نه ؤ
ملا که د ممبر نه داسې ویلے وے
ظلم دے ګناه ده د انسان وژل

## وړوکوالے

زه که به وړوکے په ګناه چرته قائیل شومه
ؤ به مې کړه وئیله به مې ال وبال ئې تا باندې

اوس د وړوکوالې هاغه ښکلے ساعت چرته دے
ضد چې پکښې ما به مې پوره کړو په بابا باندې

## جهالت (هائیکو)

ښار ناپرسان دې نو
ما هم پوزه توره کړه
وئیله مې اینګر شومه

# تپوس

د قام د ويخيدو او انقلاب خبره چا اوکړه
دا په ترنم کښې په رباب خبره چا اوکړه

دا په يو يشتمه صدۍ مونږه چرته ؤدريدو
د چا سره قلم دے د کتاب خبره چا اوکړه

ما خو په ګرمۍ کښې د نظر دهوکه ليدلې وه
دا په يخ موسم کښې د سراب خبره چا اوکړه

ما که په ممبر چرته ګمراهه سړے ؤليدو
ژبه ترې پرېکومه د اداب خبره چا اوکړه

زه هم په هزار پردو کښې پټ محبوب لرمه
نو ما ته د پړوني او حجاب خبره چا اوکړه

ستا الله خو ډېر زيات مهربانه دے الياسه نو
ستا دې يريدو له د عذاب خبره چا اوکړه

# غزل

در چې په خوبونو کښې دې خواله شم
هله به د سیالو سره سیاله شم

ستا د یاد په چم باندې چې تېر شمه
بل رنګې سکون کښې مالا ماله شم

ما چې خپله ژبه خپله نۀ کړه نو
څه رنګي به درون او باکماله شم

ګران چې راته ډک محفل کښې اوګوري
هاغه دم بې تولـه اوبې تاله شم

الیاس نه چې غرض ئې چرته راشي نو
بیا ئې ګاونډے او کلیواله شم

## قطعه

غل ته چې غل په جار ویئلے نه شي
زما په ملک کښې داسې خیال قاضي وي

بد بخته نه وي خو بس خوار شي هله
څوک چې د ځان په استحصال راضي وي

# وخت

(هائیکو نما نظم)

نه راځي په بېرته تېر ساعت د ژوند
تاپکښې پردې ټپې وئیلې به
ځان ته چې د ځان د وېنا وخت ؤ نو

قصه مې د ویجاړ ګلشن راخستې ده
پرېږدئ چې جذبې ځوانې راپارې کړم
ټپه شوم په قربان د وینا وخت ؤ نو

داسې د غفلت ژوندون مې نه لګي
څنګ مې د دنیا کاروبار کړے وے
جمات کښې د اذان د وینا وخت ؤ نو

چا وے چې ضمیر د دۀ اودۀ دے لا
الیاس به د خوارانو اواز پورته کړو
خان ته چې د خان د وینا وخت ؤ نو

۱۳ مئ ۲۰۱۰ بحیره عرب

# غزل

سکڼرے ماښام دي کړلو د بلۍ سر ته راشه
زه دې کوڅې ته راغلم ته لږه ورته راشه

ما اوربدلي دي د زړۀ نه زړۀ ته لار وي ګرانه
د زړۀ د کور په لار مې زړۀ او ځيګر ته راشه

زما پښتون احساس دنيا ته لږ خايسته بيان کړه
د مصلې نه پاڅه شابه ممبر ته راشه

ځواني دې خاورې کړله پردي وطن کښې ياره
چې خپل وطن ته راشې لږ پيښور ته راشه

خبر که سوچونه د الياس ورپکښې تندر نيسي
سپوږمۍ د ده د وړاندې مخې له نمر ته راشه

# پښتو او چیره

سیلۍ شه په طوفان هم په سېلاب کښې پښتو او چیره
ورځه مستو چپو ته په دریاب کښې پښتو او چیره

روح د ستربابا به مو په خاورو کښې خوشحاله شي
نظر ته مې د مینې په رباب کښې پښتو او چیره

ستا پرې هم زما په شانې حق دے یه پښتون ملا
خطبه کښې دې نړۍ ته په محراب کښې پښتو او چیره

ننګ رابانديې اوکړه پښتنه مینه دې اوښایه
یه پښتنې پېغلې په نقاب کښې پښتو او چیره

بوډا به شي پخپله به متلې د پښتو وائي
الیاسه لږ ساعت له په شباب کښې پښتو او چیره

الیاسه ګوګ رے ورک به شي فنا به د نړۍ نه شي
ویښ کړه پښتانه په خپل کتاب کښې پښتو او چیره

طوطه کان (۲۸- ۱۲- ۲۰۰۷)

# غزل

خوارېه ئي لکه قند چلونه زده کړله
پرهر مي د پيوند چلونه زده کړله

ما ورته وے تيتهې سترګي مهٔ ګرځه
سترګو زما برند چلونه زده کړله

اوګورئ په غم کښي هم خندا کوم
ژوند نه مې د ژوند چلونه زده کړله

ځان ته ئې نغمو له شرنګولې دي
بنګړو ئې په مروند چلونه زده کړله

ځان ته مې خاوند د مرتبې اووې
ځومره مې د خوند چلونه زده کړله

مخکښې قتل عام زمونږ په پته وو
قاتل مې اوس ځرګند چلونه زده کړله

الیاسه فيصله تري خطا شوي ده
قاضي جوړې د پند چلونه زده کړله

ورکه د دنيا دا لړه ګټه شه
خپلو کښې پرې روڼه جنګيدلي دي

دلته کښې د امن د لټون پسې
څومره ډېر کورونه نړېدلي دي

ډېرو نه منزل لاره کښې پاتې شي
ډېر تر خپل مرامه رسېدلي دي

ډېر مې په زړګي دننه ځائې کړ له
ډېر مې د نظر نه غورځېدلي دي

ځان له به اوس لارد جمود اوګوري
خوب نه مې سوچونه پاڅيدلي دي

# غزل

حســن لېونے کړه حېران اووايــه
مينې ته د مينې داســتـان اووايه

فـن تـه مې د مـيـنـې دوام اوبخښـــه
مـخـکښــې د ټـپې نـه قـربـان اوويـه

يو ځـائے تـه دا ټول پښــتـانـه راولـه
چــغــه کــړه پــه زوره اذان اووايــه

ځوبـه دې دا زړۀ د غريوه ډک ســاتې
پټ راته پـه غوږ کښــې ارمان اووايه

پره مې کړه په دشتو چې ښکاره شمه
مــا تــه لــيــونــے دي د ځــان اووايــه

تــا ســره چې ســتــا پــه غم ژړا کوي
دغــو تــه الــيــاســه يـاران اووايــه

# لوبه سیاسي

دلته پښتنو پښتو پریخودي ده
خدای خبردا څه له لوبه جوړه ده
دلته کښې دا خلق پردې حق وهي
دلته کښې یو بله لوبه جوړه ده

خپله دَ میدان نه تختیدلې دے
دلته یو مُلا خلق په شر کړله

دلته د پښتون د بربادۍ په نوم
خدائیګو چې مذهب استعمال شوے دے
بیا د څو غټانو اقتدار لره
بیا څوک کوڅه ډب استعمال شوے دے

خپله نن کرسۍ ته پاس ختلې دے
دلته دې بلا خلق په شر کړله

خپله جزیرې اخلي مزې کوي
زمونږه د خوارانو تماشې کوي
وطن سره د مینې محبت په نوم
مکر کوي اوګورئ پیښې کوي

ځکه د نظر نه غورځیدلې دے
بیا ئې په سلا خلق په شر کړله

# د رې شعرونه

د شــپې په غبرګ کښــې قرار موندو له
د ورځې شــور پـه مـازیګر لاهو شــي

په بې پایوه ســمندر کښــې ورک شــي
بخـت چې کوتـه وي قلنـدر لاهو شـــي

د خـدا ے د زات نـه تختیـدۀ چرتـه دي
کنعـان تـه نـه ګورې پـه غرلاهو شـــي

## قطعه

پـه میـنـه مـیـنـه بـه را اوګـوري خـو
چـرتـه کـه بـیـا ئې نـن پـه زړۀ جـوړه شـــي

تـا کـه راپیښـــه پکښـــې اوکړه اشـــنا
لیلتـه القـدر بـه مې شـــپـه جوړه شـــي

پوانتې نارے۔کانګو
۲۰۰۷۔۰۱۔۱۵

# غزل

بې ننګه بې پښتو خلق ، بې پته بې وعدې خلق
ژوند نه تختوي مزه ، ورک شه بې مزې خلق

ما خود رباب په تار ، د ژوند نغمې و ئیلي دي
اخلې به ترې خدا ے خبرچې، څنګه څنګ معنې خلق

دلته کښې چې راشي نو ، بیخوده او بې دمه شي
حېران یمه چې څه کوي بیا ،دا په میکدې خلق

ستا په بې ننګۍ به تا ، د زړۀ نه داسې اوباسم
څنګ چې پټ د سترګو نه، یو دم کړي مرګې خلق

هر ځائے به رسوا ګرځي ، ناحقه به قتلېږي هم
خپل تپوس چې نه کوي نو،دا نه دے ژوندې خلق

حق وایم رېښتیا وایم ،ځکه پرې ښه نه لګم
اولي مې په کاڼو راله ، ځکه دا تندے خلق

ننګ نه او پښتو نه مې، ایمان نه که خطر وي پرې
ما پسې دي نه راوړي نور، دا رنګه جرګې خلق

ممبر باند دے ناست ملا ، پردي حقونه اوخواړه
چاپیره دي تاویږي نه، دَ دهٔ شان د کعبې خلق

غر په شان بابا ورته ، تنها مخې ته اُودریدو
ظلم له را اُووتې وو ، درې واړه کندې خلق

ماباندې ډېرګران دي لویه ، خدایه قدرمن ئې کړے
په زړهٔ مې راوریږي ډېر، زړهٔ ته دا نزدې خلق

تا سره په سختو کښې ، الیاسه چې ولاړ به وؤ
ښهٔ دي دَ دے خپلو نه ، قسم دے چې پردې خلق

## لویه خدایه

ژوند جانان په یو ځائے راکړه
خاورې دا ارمان مې نهٔ کړے
ورک پناه را له د سترګو
دا ښائیسته جانان مې نه کړے

طرابلس لیبیا---- ۲۷.۲.۲۰۰۷

# غزل

خود پرستي ئې ده انا ده امن چرته پرېږدي
دلته کښې جبر دے غوغا ده امن چرته پرېږدي

دلته د مينې محبت سندرې ښنګ اووايم
د کرکې سوچ ئې اژدها ده امن چرته پرېږدي

ما نه نفرت ورله د زړهٔ نه مينه ويستې ګنې
دې نه خبر دے چې ښکلا ده امن چرته پرېږدي

د زړونو قتل به کوي ښه سر عام ملګرو
نن ئې په لاس ايخې حنا ده امن چرته پرېږدي

د پښتنو په خاوره نورې وينې مه تويوئ
ورته مې ويئلي دي ګناه ده امن چرته پرېږدي

دلته کښې خوښ دي په تيارو دا بې شعوره خلق
دلته څه بل شانتې رڼا ده امن چرته پرېږدي

دلته چې دوه په جنګ کوي خلقوله نرسړے دے
زما د زړهٔ دغه سودا ده امن چرته پرېږدي

چې څه کړئ هغه به ریبئ دا مې واورئ ګورے
زه به بدل اخلم دنیا ده امن چرته پریږدي

د سترګو جنګ کښې مې شهید ارمان ته اوژړله
د یار محفل دے قتل ګاه ده امن چرته پریږدي

په جارئې رد کړمه چې واورم ناروا د چا نه
د شعور سترګه مې ګویا ده امن چرته پریږدي

الیاس د یوے لارې سرے دے نو یوازې ګرځي
د ده د سوچ ژبه ریښتیا ده امن چرته پریږدي

## قطعه

څومره عجیبه ۆ خدایه څنګه ښکاریدو
دا ژوند بغیر د یاره څه بې رنګه ښکاریدو

پورته کړي قلم په خپله ژبه کښې لیکل کوي
الیاس خلقو ته هسې به بې ننګه ښکاریدو

# اختر ته

اے چې په زخمي زړۀ مرهمونه لګوے نه شې
اے چې د غم ډک زړګے مې ګله خندوے نه شې
اے چې اوربې تربې ته په خیته مړوے نه شې
اے چې د هجران دا تورې شپې سبا کوے نه شې

لاړشه زورَؤرله د کمزوروجاسوسي کوه
ځه چرته بنګلو کښې دَ غټانو چاپلوسي کوه

دا ګورے محل نه دے اختره پاتې کېږه مه
دا ګورے رباب نه دے اختره نغمه کېږه مه
دلته کښې شلیدلي ګرېوانونه به هم اووینې
دا ګورے سیالي نه ده اختره خوشحالېږه مه

د مینې دشمنان دې چرته خلۀ به درله ورا نه کړي
زما د خوارجونګړي ته راتګ به دې ستومانه کړي

حق درنه خپل غواړمه والله چې صبرېدے نه شم
نور لکه غلام دې بادشاهۍ کښې اوسېدے نه شم
زخمي پرهر وطن له مې دَ امن دارو ګورمه
نور لکه مریض درته په کټ کښې رنځېدے نه شم

توبه مې ستا د ښو ده دغه سپي دې رانه کورې کړه
خپل خو دې لا څه کوې پردي دې رانه کورې کړه

## قطعه

جګ ستا ته بانۀ دې چې رااوګورے
دغه میخانه راباندې ښه لګي
زما سره زما د خیال خبرې کړي
ځکه خو دا ستا سره مې زړۀ لګي

# غزل

په زړهٔ دننه مې پروت غم ښکلے شي
جانانه را شه چې موسم ښکلے شي

مدام مې غریو نیسې هم دا فکرونه
د پښتونخوا دې کور او چم ښکلے شي

خلقه جانان دے په ژړا راغلے
لږ ورته غوږ شئ چې ماتم ښکلے شي

چې په اوده بخت د پښتون اوژاړي
شور به مې هله د قلم ښکلے شي

الیاسه پورته نه کړي سر د زمکې
په یوه سجده که دي حرم ښکلے شي

# تا چې د کلي حال ویئلو ما ته (ازاد نظم)

ستا دَ راتګ ئې اوریدلي وو نو
زړۀ ناقراره ساه نیولے زما
لږ شان قرار شو وے ئې څه دَ خبره
اوس به مې خپل دَ ژوند ملګرې ما ته
زما دَ خپل وطن خبرې اوکړي
دغه خبرو کښې به خامخا
زه ترې نه دا ځلې تپوس کوومه
چې وایه څنګه وؤ د سوات پښتانه
وزیرستان کښې سیالي وه او کنه
دَ باجوړ تپوس مې کړے نه ؤ
راته په چغو چغو ګران مې سر شو
وے ئې دَ سوات دَ اوړي یخه هوا
اوس دَ بارودو په ګرمۍ کښې رنګ ده
اوس مو د چم کوڅو کښې چرته کیږي
هاغه میرګاټې او کاډا دَ وړو
هاغه شلغاتي او خندا دَ وړو

اوس په حجرو کښې ناسته خوند نه کوي
اوس په جمات کښې هم د مرګ یره ده

اوس خو چې کلي ته راځې نو ګرانه
تا ته به سمه ادیره ښکاره شي
ته لا لګیا وې تا قصه کوله
تا وې په څه تاله واله شو مونږه
تا وې دا څنګ خواره واره شو مونږه
تا وې دا خلق مونږه ولې وژني
ستا لا په سترګو کښې ګیلې وې نوري
ما درته څو څو ځله دې دوران کښې
دَ سوال لهجه کښې بس کیدو ته اووې
خو ته لګیا وې صبریدلې چرته
زما په مخ دې اوښکې نه لیدلې
تا چې د کلي حال ویئلو ما ته
تا چې د کلي حال ویئلو ما ته

## قطعه

خوا ته به ئې لاړ نه شم نفرت به ترینه اوکړمه
قسم دے تیروم ئې نه هجرت به ترینه اوکړمه
ژوند که د غتانو نوابانو چاپلوسي وي نو
قسم دے خوښ مې نه دے بغاوت به ترینه اوکړمه

# غزل

د عقل په درشل مې د وجدان په سر جهګړه ده
سپرلي سره مې راشئ د خزان په سر جهګړه ده

زما د فکر څومره تاوان شوے دے په جنګ کښې
د ځان سره مې ځکه نن د ځان په سر جهګړه ده

زه داسې ښار کښې ژوند کومه ژوند ته کفر وائې
سیالي پکښې حرام ده د ایمان په سر جهګړه ده

د عرش نه ورته وائي چې د یو بله لوګے شئ خو
په زمکه مې لیدلي د اسمان په سر جهګړه ده

د خدائے د نامې زارشمه رسۍ ئې پسې پرېښې ده
د خدائے په نوم شروع نه د قرآن په سر جهګړه ده

د یو بل سره مینې رور ولۍ ته ئې پام نشته
حجاز د خلقو هم لا د نجران په سر جهګړه ده

ستا په بې رخۍ چې زما ژوند ته رسیدلے دے
نو ستا سره مې نن د هغه زیان په سر جهګړه ده

د غره په سـر ئي نه پرېږدي د نوح طوفان پسې دے
اجل جوړې راخستي د کنعان په سـر جهګړه ده

مونږه حق پرست به د موسیٰ مرسته ضرور کوؤ
فرعون سره په جنګ یم د هامان په سـر جهګړه ده

خوار شي د علي سره دې مینه سوچه نه ښکاري
صدیق سره دې بغض د عثمان په سـر جهګړه ده

موده پس ئي د راتلو په حق کښې نه یمه ملګرو
وصال سره مې ځکه د هجران په سـر جهګړه ده

لګیا دي وائي شنه بوټي اوچیږي ځئ چې لاړ شو
وریځو جوړه کړې د باران په سـر جهګړه ده

د کور د کټوې غم ناولو پرېښے دے بیګار کوي
بېوسو جوړه کړي بیا د خان په سـر جهګړه ده

لګیا دي د یو بل سره تکرار زما په نوم کوي
د ښکلو په محفل کښې د جانان په سرجهګړه ده

که خیال مو ورته کړے وي ملا پرې هم راضي نه دے
روژې په سـر لا څه چې د شعبان په سـر جهګړه ده

خپلو کښې تقسیم شو د دشمن چال مو کامیاب کړلو
اســلام هســې بهانه ده د افغان په ســر جهګړه ده

دې خوار ســپاهي ته اوګوره پنځو روپو د پاره
ډرائیور ســره په لار ئې د چالان په ســر جهګړه ده

لګیا دې وائي اوګورئ الیاس ترې غزل ښــه لیکي
بعضــو سـره اوس مې هم د ګران په ســر جهګړه ده

# خلق او زه

خلق وائي ګوَره وایه خوله خوږیږي
زه چې ګوَره ګوَره وایمه تر خیږم

خلق وائي مینه ژوند او مینه رنګ دے
زه چې مینه مینه وایمه رنځیږم

خلق وائي په شرابو کښې مستي ده
زه چې سترګې د یار اووینم مستیږم

# قطعه

داسې ورته ځه الیاسه اووایه
نور مې په دې زړۀ پاګل کښې مه اووسه

پاځه خپل مقام دنیا ته اوښایه
پټ لکه سیپۍ په تل کښې مه اووسه

# سیاسي بیان

دۀ ته د سر پکښې خطر دے ، دے دي ځان ساتي
د حادثې نه مخکښې زبرګ داسې خبرې اوکړې
د ده دا وینه تو ئېدۀ به ضایع نه ځي واورئ
زما قاتل زما په مرګ داسې خبرې اوکړ ې

# غزل

ټولې دنیا ته ښکاره پنهانه چرته وې ته
زه ژړېدم درپسې جانانه چرته وې ته

ما وې په تلو کښې به راستون شې چرته
راغلې خولاړه هاغه بارانه چرته وې ته

ماوې چې دا ځلې د جبر محلونه وران کړې
د تندرونو نه ډک اسمانه چرته وې ته

خاورې کېدلو خدایه زما د سترګو وړاندې
څه عجیبه منظر ؤ ارمانه چرته وې ته

ډېر بې لګامه ګرځې الیاس بدنامه نه کړې
چې بې ننګې بندې کړې زندانه چرته وې ته

# اخترته

که ئې را تګ راوړې غمو نه ځئ چې تړو اختر
مونږ لـه دې نـه ورانوې دغـه د جونګړو اختر

تاپه اخترکښې ورکړه هرځائې کښې هرچا له روپۍ
بچے مې ببیا ببیا را ته وا ئې با با ما له روپۍ
ورته مې وے د سـیالۍ ورځ ده اوښـکې پاکې کړه
ځے کـه اختر تـه د ملګرو سـره واخلـه روپۍ

خو ځان ته خیال کوه د ګڼې خوا له ورنشے
چرته په کورکښې راته جوړ نه کړے د مړو اختر

حـجـره جـو مـا ت مـکـتـب ئـې اوسـیـزلـو
هـم مـې پښـتـو هـم مـې ایـمـان وژنـې
سـوات بـاجـوړ زمـا تـا لـه تـرغـه شـو
دلـتـه بـمـونـه وروي دلـتـه خـوبـان وژنـې

دلته په کټ کښـې څوک بې غمه ډه ډه نه لګو ي
دلته تیریږې په هر چا باندې د سـتړو اختر

زه داسې نه وایم د ښارکوڅې د ي ورانې شي خو
زما د کلي د ګلشـــن ګلان دي هم تا زه و ي
ما له د ختهو جوړ کورونه مې نور مه ورانوئ
ما قدرې ویلې وو زما یاران دې هم تازه وي

خو په تا چرته زما دا خبرې ښـــه لګیدې
را ته دې جوړ کړلو په کور کښـــې د جهګړو اختر

یادګیرنه :- دا نظم ما په هاغه وخت کښې لیکلے وو کله چې په پښتونخوا کښې د طالبانو د ظلم انتها وه-

بندر عباس-ایران
۲۰۰۸-۰۲-۱۰

## قطعه

چرته چې ما په غړیدلو به لیدلې کلۍ
اوس په هغې خاوره وریږي د اورونو ګلۍ
ځۍ چې دا ښـــار کړو خپل پخپله ودان
ترڅو به داســـې مو نړیږي د کورونو بلۍ

# غزل

په ژړا شوه راته بيا مې د وير ليکه
اوس مې نشته په وينا د تاثير ليکه

د پښتون شمله ئې جګه پاتې نه کړه
خلقو خرڅ کړله نن بيا د ضميرليکه

غټ نظري يار ته ټيټ نه شے تنديه
چرته بت به شي ريښتيا د تصوير ليکه

د هجر شپۀ کښې ايمان پاتې نه شو
ستا راتګ ته خنديدۀ د شوګير ليکه

بد عمله بد کردارو ته چې ګورم
په مخ نه لری قسم دے د صير ليکه

محبت ۀ دباچا ګۀتو رد نه کړه
په دربار کښې د محمود د وزير ليکه

د اميد ډيوې دې مړې نۀ کړې الياسه
ستا محنت به بدلوي د تقدير ليکه

# اندازه (ازاد نظم)

د هر څۀ نه خبر وومه قصه ئې راته شوې وه
وطن مې ورانېدلو اندازه ئې راته شوې وه
ليدۀ مې قتليدۀ چې د ګل رنګه باغ ګلونه مې
بيوسه ووم خو وس به مې کوو چې خاورې نۀ شمه
او تا ته ښکاريدۀ چې د ايرو په رنګ به والوزم
ورک به شمه هير به شم دنيا به مې نوم نه اخلي
خو يه زما ګل وطن په وينو رنګوؤنکيه
ستا دغه ارمان پوره کېدو ته پرېښودے نه شم
بېرته به زرغون شمه دګل په رنګ د خاورو نه
د ګل دخوشبويۍ ژړا مې اوريده
د امن په تلاش کښې وو جرګه راباندې شوې وه
وطن مې ورانيدلو اندازه ئې راته شوې وه

د سينګاپور نه په واپسۍ
۲۰۰۸

# غزل

تلو کښې چې په بیرته دي کتو له ژبه ورکړله
دا دې څۀ په چل زما سلګو له ژبه ورکړله

څۀ چل خو خامخا وو چې فطرت ګوته په خلۀ وو
حسن لیوني دي آئینو له ژبه ورکړله

سترګې زما دواړه دي بیا ځان ته په کتو کړلې
زور دې د نظر جوړې لېمو له ژبه ورکړله

وائي څومره ښکلے ګل د ښکلي ګل د پاسه شو
ناز ئې د مغرور حسن کمڅو له ژبه ورکړله

چپ یم د بل لاس مې ګریوا نه ته رسیدلے دے
دغه بې وسۍ مې اسویلو له ژبه ورکړله

چا چې مې د ننګ ناموس سودا په هر ډګر اوکړه
قام زما د داسې ظرف سړو له ژبه ورکړله

ستا په نوم زما سره زما په وطن جنګ کوي
دا دې څۀ له خدایه نن هغو له ژبه ورکړله

ستا چې درباب په تار کښې یه الیاسه نوم اخلي
شور دې د قلم جوړې نغمو له ژبه ورکړله

## قطعه

ما ورته مغروره سر راټيټ کړلو
چل د بندګۍ دې زما اوليدو
بيا ئې په وعدو باندې زه تېروتم
حال د سادګۍ دې زما اوليدو

## د رے شعرونه

ژوند که د مزې او خوندور غواړې
لږه دې اوږه روږۍ کښې ښکته کړه

نور ورسره مۀ کوئ روزګار د ژوند
سپکو ډېر درانه بې عزته کړه

خلق مې شعرونه د کتاب لولي
خدايه مرتبه دې راله چوته کړه

# غزل

ما د سـيالۍ په نامه د سـترګو نم کښـېـ کتو
ځوک بت خانې ته لاړه چا پـه حرم کښـېـ کتو

د زړۀ قرار د پاره ښـکلې تصـوير د امن
ما د سـتم د چړو پـه زير او بم کښـېـ کتو

ګلاب ځوانې مې کړه ايره ستا د نظر نظارو
دا مې لا څنګه سپرلې په څه موسم کښېـ کتو

چا بـه د ځان سـيالۍ لـه پردي بچي وژلـه
مـا د پرهر پـه خاطر علاج پـه غم کښـېـ کتو

هغـه د مينې غزل پردي وطن کښـېـ وائي
خلقو الياس لېونے د کلي چم کښـېـ کتو

# غزل

وایه څۀ له په خندا شــې ، مخامخ چې راته راشــې
ښــکلی مســته دلربا شې ، مخامخ چې راته راشې

مـاه جبینـه ګـل ورین ئې ، نـازنینـه مرمرین ئې
لکه ستورے په ځلا شې ، مخامخ چې راته را شې

اے زما په زړۀ کښې پروته ، اے د امن لوئي ارمانه
ساه نیولے وارخطا شې ، مخامخ چې راته راشې

ځلنده ئې لکه ستورے ،د عنبر د خیشت سبب ئې
لکه خال د مخ رڼا شې ، مخامخ چې راته را شې

منافق ئې په زړۀ تور ئې ،چې په شا ئې بد مې وا ئې
روڼ سحر او سپین سبا شې ، مخامخ چې راته راشې

چنګېز خویه جادوګر ئې ، مهربانه قدردان ئې
خوږ نظر لرے ښــکلا شــې ، مخامخ چې راته راشــې

د الیاس د زړګي ســره ، د الیاس د زړۀ ټکوره
د الیاس د سر سودا شې ، مخامخ چې راته راشې

# اولنۍ کوشش (ازاد نظم)

په خوند او رنګ چې پوهېدمه ئې زۀ
د عمر ډېره حصه تېره وه
ګڼې راځي، چې لږ شان سوچ پرې اوکړو
تاسو ته خپله بۀ رایادې شي خو
لکه دا ما ته چې نن مخې ته شوه
چې زه وړوکے ووم نو یه ملګرو
ما ته ډېر ښه یادیږي
چې په وړو وړو پاپو مې کله
په پښتنه خاوره قدم ایښودو
ما ته ډیر ښه یادیږي
چې مور او پلار بۀ زما
هر چا ته وئیل چې ګورئ
بچې مې لاړو قدم واخستلو
سم به خوشحاله وو زما دپاره
ما به د خپلو د لیدو دپاره
بېرته یو څو قدمه واخستله
زر به رااولویدم په وچه زمکه
هر لګیدلے ځائې به اودرېدیدو
ما به په چغو چغو اوژړله
په لږ ساعت کښې به مې یه ملګرو

په لپو لپو اوښکې توئې کړلې
که څوک په خوا کښې به ولاړ وو زما
دلاسه یو دم به ئې اونیولم
وې به ئې مه ژاړه مېړے دې مړ کړه
بیرته به پاڅېدم خوشحاله به شوم
ما د دې تګ د طریقے زده کړه کښې
په څوڅو واره وو تیندک خوړلے
خو حوصله مې دومره لوړه وه چې
اوس مې د ټولې دنیا سېل اوکړو
دغه تیندک په ما شومتوب کښې زما
د راروان ژوندون سبق ښکاریدو۔

***

## محمد ﷺ (ازاده قطعه)

اول جوړ مې تصور کښې ستا تصویر کړو
بیا مې خیال ورته راویخ د مصــور کړو
رنګینئ د درســت جهان مې کړې راغونډې
خو رنګونه د رخســـار دې پوره نه شــو

مدینه منوره کال ۲۰۱۵

# غزل

فطرت خپله ئې بیا بیا حالونه وائي
سینګار مه کړه ستا ادا حالونه وائي

نور په ځان چې د صوفي ګمان اونه کړے
ستا سیرت ستا د ګناه حالونه وائي

که هزار پردو کښې پټ شے زه دې وینم
ستا جلوې ستا د ځلا حالونه وائي

که ظاهر کړې راته ډېر په تندې ګونجې
ستا چشمان ستا د مسکا حالونه وائي

د الیاس پوښتنه څه کوې د نورو
خپل شعرونه ئې رېښتیا حالونه وائي

هرمز۔ بحیره عرب
۲۰۰۲۔۰۳۔۰۸

# غزل

د ګناه نه کۀ صفا ئې مبارک شه
تل بۀ ستورے په خلا ئې مبارک شه

حق چې غوارې د باطل نه کوې سنده
نا بینا نه ئې بینا ئې مبارک شه

کۀ په عشق کښې د دنیا نه بې پروا شوے
نازولے د الله ئې مبارک شه

چې ککړه دې په خاورو ککرۍ کړه
که ادنٰی وې خو اعلی ئې مبارک شه

چې د یار د مخ ستائینه پکښې نه وي
که غزل ته په ژړا ئې مبارک شه

رشک به ولې په تا نه کوم رقیبه
یار زما دے ته ئې ستا ئې مبارک شه

چې مثال په دنیا نه لري الیاسه
که عاشق ئې په رینښتیا ئې مبارک شه

# غزل

په ژوند ناکامه دي ملګرو د نصابه تختي
پښتون به څه ترقي اوکړي د کتابه تختي

زه هم مستۍ کښې دا سې تیښته د خپل ځانه کوم
لکه نغمه چې خوریدو له د ربابه تختي

فطرت مي نه دے چې زه تیښته به د قامه اوکړم
ستنه شي بیرته که چپه هم د دریابه تختي

د چا د مستو سترګو مست سرورئې اولید لو
دا په محفل کښې چې ساقی هم د شرابه تختي

ما ته کافر د میني مه وائي په حقه یمه
په لیدو هسې به زاهد مي د محرابه تختي

بیا د ګل مخي د راتګ نسیم پرې اولګیدو
خوشبو هم لاړه زاریدو له د ګلابه تختي

توری تيارے کړه شابه زلفې راخورے کړه په مخ
رڼا په زيږ مازيګري کښې د افتابه تختي

وخت د جانان د يادولو رانزدے شو جوړې
مستي دې لاړله الياسه د شبابه تختي
بندر عباس۔ايران
۲۰۰۸۔۰۲۔۱۷

## سوال ( ازاده قطعه)

تر اوسه غلے ووم ما هيڅ نه وئيل
خو نن ئې د ټول اولس په مخکښې وايم
خدايه زمونږه پښتنو له راکړه
په خپله خاوره خپل اختيار يو ځلې

# غزل

تعویز دي کوز کړلو د غاړې اوس جنتر ټکوے
څه به د وهم نه بهر شي د چا ور ټکوے

د جبرکانړې د جابر لیندے کښې څه له ایږدے
چې بیا ویشتلې مرغۍ پریوځے وزر ټکوے

د خپله لاسه خپل انا غرور دې خاورې کړلو
ته چې پردې کور ته ولاړ ئې پردے ور ټکوے

ځه چې نستونړي بډی راکاږو د وخت جابر ته
څو به تندے ځانله د سوخته په کمر ټکوے

لاړې نغمې د سوي زړۀ مې هوا ګانو اووے
مطربه هسې دې تارونه د هنر ټکوے

قسم په خدائے چې کربلا به شي بلا په هغو
چې د حسین د پاره منډه کړے شمر ټکوے

څۀ عجیبه خصلت لرے الیاسه پوه دې نه کړم
هم پورې خاندې هم دربار د قلندر ټکوے

بندر عباس ایران
۲۰۰۸-۰۲-۵

# غزل

پورې مې په تن لمبو ته اوګوره
خپل مې کړه زما سلګو ته اوګوره

سترګې مې د اوښکو نه راډکې شوې
تلو کښې مې اشنا کتو ته اوګوره

ته خو راجرګه شه که زه نه درځم
پښتون یمه زما پښتو ته اوګوره

سختو کښې د ژوند یواځې نه یمه
ځنګ کښې د ګلاب ازغو ته اوګوره

غریب به څنګه چوڼ د خلے اوباسي
چغار کوي د خان پڼو ته اوګوره

څه شوه چې غاوره وو په مال باندي
خاورو کښې پراته دي مړو ته اوګوره

زور که مې د عشق د لمبو ګورے نو
سرکښې مې د ے سپين وېښتو ته اوګوره

الياس دي د يادونو سره ژوند کوي
چغېږې د سحر مرغو ته اوګوره

(طوطه کان)
۲۰۰۲.۰۷.۲۲

# قطعه

ځيرى ګريوان ګرځمه زه چا ليونے کړے يم
خوږو خوږو کتلو د اشنا ليونے کړے يم
رنګ او بوۍ په ګل کښې دواړه پيژنم
زه حسن پرست د غه ښکلا ليونے کړے يم

# متل په هائيکو کښې

غاصبه سوچ ته دې لګام اونيسه
د سيند دا کاڼې که پاسته وې چرته
دا به خوړلې ګيدړانو وو ټول

# غزل

چې د نظر سره اشنا دې کړمه
د ګلو لختې وارخطا دې کړمه

ستا د الفت دریاب کښې څه لاهو شوم
ساده باده ووم په سودا دې کړمه

لا ئې خاموش نظر ګیلې کولې
خدا یه په څه وخت کښې ګویا دې کړمه

پټ دې په مینه لیونے وومه خوښ
ښکاره دنیا ته په دنیا دې کړمه

خیال د الیاس خو مخکښې داسې نه ؤ
خدایه غزل سرا دې کړمه

انډونیشیا ۔ مئ ۲۰۱۳

# غزل

په توره شــپه کښــې ســپین سـبا ته ګورې
رڼـا بــه راشـــې چې رڼـا تــه ګــورې

زۀ دا منم زړګیه ګورے ورته
خو کله کله پکښې چا ته ګورې

په ائینه کښـــې ځانته څه له خاندې
خـانـده هلـه چې کلـه مـا تـه ګورې

جوړې زمـا د زړۀ ســـودا دې اوکړه
په مخکښـــې ځې په روســـته شـا ته ګورې

غزل دې ځکـه د رنګونو ډک شـــو
اے د الیـاس ظرفـه حمزا تـه ګورې

# قطعه

کـه پکښـــې خس دې هم پـه ګؤتـه نـه شـــو
د داســـې ویش نه خو تالان هم ښــه دے
خپلې فـا یـدے لـه ئې روا اوګڼړې
په یو نیم ځائې کښـــې ملاجان هم ښــه دے

# غزل

بې فکر دې روښانه به په خوا کښې ووم
سیال دې زه بې شانه به په خوا کښې ووم

څو مره په خندا به تېرېدلو ژوند
تا سره چې ګرانه به په خوا کښې ووم

ښکلې ؤ یورپ خو بې سکونه ؤ
ستړے ئې ستومانه به په خوا کښې ووم

ته چې ائینې کښې څنګه ورکه شې
داسې دې حیرانه به په خوا کښې ووم

خاموشه ادیره به رانه جوړه شوه
ګونګے دې بې زبانه به په خوا کښې ووم

مینه د خپل ځان الیاس لیدلې وه
ډیر دې قدردانه به په خوا کښې ووم

ایستونیا یورپ ۲۰۰۸

# غزل

فن مې په ځلا لېمو ته راولم
پړق لکه برېښنا لېمو ته راولم

هره نظاره را باندې ښه لګي
عکس چې د ښکلا لېمو ته راولم

جوړ شي د خایست د ګلدرو وطن
ګرانه زۀ چې تا لېمو ته راولم

مخکښې ئې په پاکو اوښکو اووینځم
هله دې اشنا لېمو ته راولم

خپله بیا دا تورې تیارے اوتختي
رنګ چې د سبا لیمو ته راولم

د یدن مازیګرے ئې را نه پاتې شو
ځم چې ئې قضا لېمو ته راولم

دومره ملامت به ځان ته اووایم
درد به د هر چا لېمو ته راولم

ته که دې په خوئ کښې بدلون نه منې
زه به هم انا لېمو ته راولم

دغه قاتلانو د ګور کړے یم
څنګه ئې ادا لېمو ته راولم

ستا به د پښتو د پاره څه وې درد
زه به دې ژړا لېمو ته راولم

الیاس د نزاکت په معنې پوهه شم
ګل چې د لالا لېمو ته راولم

# غزل

چې وړو وړو خدا یا نو ته سجده شوه
زما سر ورته ټیټ نه شولو قیصه شوه

واکدارانو واک دچا په لاس کښې ورکړو
وینې وینې د وطن کوڅه کوڅه شوه

یار چې جګ کړله با نه د ځان کتو له
عبن په دغه وخت کښې خړه آئینه شوه

د ښائیست د کراماتو منکر نه یم
مثالونه د یوسف د مخ قیصه شوه

یو ذره چې د پښتو ور پکښې نه وه
د هغو سره مې ځنګه تله راتله شوه

چې پښتو ئې د ایمان حصه ګڼړله
هاغه ښکلې پښتانه ښاغلې څۀ شوه

بې ننګي زما وئينه په هډ لګيا دي
ورا نه نخښنه د بابا لويه حجره شوه

تنها نه يمه لښکرې را سره دي
ستا يادونه مې د زړۀ په کور ديره شوه

د رڼا بخرې هر اړخ ته نولې
احساس مې اوراخستې د ے لمبه شوه

غمازانو په رقيب مې زيرے اوکړئ
د جانان سره مې بېرته تله را تله شوه

ليونې پکښې د ژوند سندرې وائي
پاڅه چغه کړه اليا سه سره غرمه شوه

# غزل

چې ببېؤســه دي حاکم شــي هم ســرکـار
هلـتـه څـه بـه ژونـدون اوشـــي پـه قـرار

عـاقلان پرې عمـل اوکړي بهره منـد شـــي
ناپوهان کړي نصيحت پـه اوګو بار

د حـاجـت پـوره کـيـدو لـره روا ده
عبث نـۀ کوي نېکـان تـګ پـه بـازار

غـوره والـے پـه عـمـل دے پـه ذات نـه
ســپک اونه ګڼړے اينګر ، کولال ،چميار

کم خواړه ګورے د روغ صـحت ضـامن دے
په خېرات کښــې خواړه اونه کړے بيســيار

که منصــب د دروېشـــانو دې پکار وي
اوښـــکې توې کړه څـه ژړېږه پـه زار زار

لکه سیند وي په سینه خشاک اخستے
داسې عمر دے تیریږي په تلوار

احمقان ورته لاس چوت کړي دنیا غواړي
خلقه جوړ مې ګمبد نه کړئ په مزار

قلا ژبه دي بلا نه کړے الیاسه
کلام نه کوي په هر ځائے کښې هوښیار

مدین سوات ۲۹ ـ۲ـ۰ـ۲۰۱۰

# قطعه

څنګه چې خندا باندې په تور سحر راغلې وه
داسې په سلګو کښې په ژړا ماښام روانه شوه
ما په ټینګه اونه کړلو ست د ګلو لښختي ته
ځکه خو کاواکه په رڼا ماښام روانه شوه

سنګاپور ۰۳ـ۰۷ـ۲۰۱۲

# غزل

وژني مې د سر خلق زما د زړۀ سکون سيز ي
اوګورئ دنيا ته په پښتون با ندې پښتون سيز ي

مونږه به د خيره سره بيا چرته را يو ځاے شو
هسې به غماز ځان له د سختي نه لړمون سيز ي

واخلے د دې خاورې واک مې خدا يه ته د هاغو نه
څوک چې په رڼا ورځې د دې وطن قانون سيز ي

دنيا کښې د بارودو کاروبار روان په دغې دے
نوم پرې د اسلام اخلي کورونه د پښتون سيز ي

الياسه دغه پټ خلق ښکاره راپسے شوې دي
دوئ راله سبا د ژوند هم دوئ راله پرون سيزي

# غزل

بې ډوله قافیې دي ردیفونه ډېر تراخه دي
غزل کښې رابند کړي مې بیتونه ډېر تراخه دي

تا ته ئې دا ستا ستم په ګوته کړو نو ځکه
ځما د بې وسۍ دغه آهونه ډېر تراخه دي

رښتیا وئېل په دغه زمانه کښې لوئ جهاد دے
په زړۀ مې دفن کړې ارمانونه ډېر تراخه دي

ریښتیا ده چې خائسته وي ښکولے رنګ د سور ګلاب
په سرو وینو ککړ د مرګ رنګونه ډېر تراخه دي

سر وهلي بر وهلي په تکل کښې د سیالۍ ووم
بیوخته ئې سپین ږیري کړم غمونه ډېر تراخه دي

الیاس چې د کم ظرفو ظرف لیکلو خلقو وئېله
د ده د قلم تورو کښې خیالونه ډېر تراخه دي

# غزل

د شـــر ملګرې راته وائې ، خو مونږ ښــه خلق یو
په مینه ســر ورکوؤ دومره مونږ خوارږه خلق یو

مونږه د غره خلق پــه دوه خبرو ځـه پوهېږو
مونږ د وطن په مینه مســـت ســـاده باده خلق یو

مونږ د تمیز زده کړي ټکي لا هېر کړي نـۀ دي
پـه نوي دور کښـــې د خوی بویـه زاړه خلق یو

په خپله خاوره د پردي قانون رواج به ســـیزو
مونږه ســـاړه یو خو که ګرم شـــو تاوده خلق یو

نور په پردي جنګ کښـــې دا خپلې پګړۍ نه ورانوؤ
امن دې را شـــي مونږ پـه امن اما ده خلق یو

مونږه د خپلې وښـا چرتـه پـه اســـانـه اوړو
پښـــتو مو ژبـه ده د خـاورې پښـــتـانه خلق یو

# غزل

ژوند ئې راله ګران کړلو، د ګران پسې مې اوژړل
بیا په چغو چغو ،د جانان پسې مې اوژړل

څه پسې چې خاورې شو ، هاغه را پکې نشته دے
ننګ او غیرت لاړے ، د ایمان پسې مې اوژړل

خلقو به لا وې چې ،چرته روغ لېونے شوے دے
ریخې مې کړو تار تار شو، د ګریوان پسې مې اوژړل

زمونږه د کوټو پکښې ، برګړې اوبو وړې
شوې په سیلاب کښې ،د خپل زیان پسې مې اوژړل

دنیا را پورې ټوله ، خندید له ما لیدلي وه
الیاس دومره ساده وومه ،د ځان پسې مې اوژړل

# قطعه

سر د پاسه سر چې به ئې منلو نه
ښه شوه زما سر دې ورته اوښودو
الیاس به درته ولې سجدې نه کوي
خدایه میر جعفر دې ورته اوښودو

# تماشه

واشنګټن په تماشه دے هم لاهور په تماشه دے
پښتون یمه په مرګ باندې مې ګور په تماشه دے

بیا هسکې پګړۍ د بې ننګۍ په دوړو خړې شوې
احساس ته مې پښتون وجود پیغور په تماشه دے

دننه پکښې څومره د جذبو بڅرې بریښې
خاموشه سمندر ته ئې پټ شور په تماشه دے

هر ځائے ورته د ګل غوټو سپېړدلې خندا ګاڼې
ښایست ته ئې سپرلے داسې راخور په تماشه دے

تماشې ورته پخپله تماشه شوې د حیرت نه
د ورا یه را ته خپل د زړهٔ ټکور په تماشه دے

دنیا چې ئې زما د فن د خیال راپاره کړې وه
الیاس سر په سجده ورته نسکور په تماشه دے

# غزل

په نه څۀ باندې ســـتا هاغه رتل مې ســـادګي وه
خلوص ته اداګانې ســـتا وئيل مې ســادګي وه

دا بوئ چې د بارودو د لوګو پکښــې نن خور د ے
دا هيڅ نـه وو ملګرو پـه کـابل مې ســـادګي وه

پختون پخپله نه غوښـــته چې خپلو ســره يو شـــې
په لر او بر د يو افغان تکل مې ســـادګي وه

د جبر تور قـانون لـه ئې پـخپلـه ځـان ورکړ ے
بدلون له د پښتون د بخت غو ښتل مې سادګي وه

الياس ته ئې ســاده باده په ډک محفل کښـــې اووې
دا ځکـه د خيـالونو پـه غزل مې ســـادګي وه

# مستي

داسې څوک نشته
چې دلته تنګ دے
نوې دنيا ده
څه نوے رنګ دے
د هر چا خوا کښې
جانان ترڅنګ دے
مسته مستي ده
بس دجام کړنګ دے
د چا په شونډو
د خندا رنګ دے
بس کړه الياسه
زړګے دې زنګ دے
لړ په سجده شه
خوښ ئې ملنګ دے

کوينچ کلب۔مډګاسکر
۲۰۰۲۔۰۲۔۲۲

# ارمان

زۀ هم ســوے ســتا پـه نوم وے زرها ځله
لکـه خـاورې شــي ايرې پتنګ پـه شــمع

بد بختي به ئې بدل شــي نېک بختۍ ته
بس که پاڅېدو پښــتون ننګ له په جمع

# قطعه

تــه چــې راتــه نــه ګـورې در اوګـورم
دې تــه محبت نــه نو بيــا څـۀ وائـي

ژوند له مې د مينې رنګ غوښتلے ؤ
خـلق راتـه هســـې ديـوانـه وائـي

ويلاګارسيا ـ سپين

# قطعه

بې بيعتـه لګول د ســر ګناه ده
هندو ســتړے خدائے نا را ضــه
کاميابي که د آخير غواړې الياســه
بيعـت واخلـه هلـه زر زر د حجـازه

# غزل

څو به زما نه لرې اوسې ته بهر جانانه
کلي ته راشه خدائے دې مه کړه مسافر جانانه

راشه په دا وخت به مو یو بل ته کاته کوله
نمر د اسمان غاړې له راغے مازیګر جانانه

چې د یو بل سترګو کښې ورک به شو مونږ
هېر کړمه څنګه د دیدن هاغه منظر جانانه

ستا به یو ځل نیم چرته زه یاد کښې راغلے وومه
ما تۀ یاد کړے وې دې خوږ زړۀ ته اکثر جانانه

چې ارماني سترګې د اوښکو ډکې نه ګرځوي
اباد کړه راشه د الیاس د زړۀ کنډر جانانه

۹ مئ ۲۰۱۰ خلیج بنګال

# ډریش

څنګ چې به پخوا وړو په کوڅو کښې لوبې کولے نو پټ پټ به ئې د بل ملګري د شاته لمن پورې چیرړئ اوتړله او یا به ئې په کاغذ کښې سورے اوکړو او د لمن پیسکے به ئې د کاغذ په سوري کښې دننه کړو۔ وے به ئې چې لکۍ مو پورې اوتړله۔ او وړو به ورپسې بیا چغې شروع کړے چې ډریش ۔ ډریش۔ په لګ ساعت کښې به د ډریش دغه چغې د وړو د پاره دومره خوندورې شوے چې د ډریش نه مخکښې او وروسته به ئې د او لفظونه اولګول۔ او د بې خبره کس پورې به ئې خندله۔

زما خیالونو هم نن دغسې د هاغه خلقو پورې نعرې وهلې۔ چا چې د پیسې پسې خپل ایمان پښتو ننګ او ضمیر خرڅ کړے وو ما چې د خپل خیال دغه نعرې اولیکلے او بیا مې اولوستے نو دا بګتۍ ترې جوړه شوې وه-ما هم د غې بګتۍ له د ډریش نوم ورکړو

طوطه کان - ۱۳ مئ ۲۰۰۵

یو ځاے کښې یو څۀ وائي بل ځاے کښې څه بله وے
څه مړه ورکیږه ستا خو قول هم دوه رنګه دے
خدائے خبر چې څو رنګه به ته په ژوند عمل لرے
ما ګڼې دروړي فیصله تا له دژوند مې وه
بس خو چې ته ستون شوے دې د ژبې نه
نو ما ته زما پوهې هلته چغې کړے
اوګورئ ظالم چا په یوه روپۍ اخستے دے
ما وے اوس به ټول ورپورې اوخاندي
کم دے خو د خلقو زړۀ کښې یره د ډنډے نۀ وه
غږ ئې قدرې نۀ کوو ولاړ به دومره غلې وو
اوس به ګڼې هر ځائې کښې نعرے ورپسې شاته وے
ډریش اوو اوو ډریش۔

# د امن ارمان

لارې کوځے د ګلو ډکې مې کړے
په دے امید چې ته به راشے چرته
زما د خاورې په وران شوي ګلشن
مونږ له به زیرے د سیالۍ راوړې
خو ستا د راتګ په انتظار کښې زمونږ
د ګل وطن کوڅه کوڅه وینې شوه
بل پرې غربت د پاڅه بل ستم شو
ګنې ما وے چې امن ناوې غوندې
دا ځل به راشي زما ځنګ ته غلي
ما به مسکے کړي ما به اوخاندوي
خو ستا د راتګ څه پته نه لګیده
ژوند مو عبث په طمع طمع تېر کړو
لاړے انبار مو شوې په سر خاورې

طوطه کان ۲۰۰۵

# غزل

که سـلګۍ اوښـکې دردونه ځانله اخلې
مینه اوکړه که فکرونه ځانله اخلې

په خزان کښـې دې د باغ خصـمانه اوکړه
د سپرلي نه که ګلونه ځانله اخلې

ځه د عشـق په کاروبار کښـې اموخته شـه
که لمبې او سـره اورونه ځانله اخلې

لږ زما شـان بې وفا له دې زړۀ ورکړه
که په زور باندې غمونه ځانله اخلې

د بې ننګه یار کوڅې ته تله راتله کړه
که د خلقو پيغورونه ځانله اخلې

عمل ښـه کړه دې په دې دنيا الياسـه
په جنت کښـې که کورونه ځانله اخلې

۱۰ جون ۲۰۰۲ طوطه کان

# غزل

نیولے تـل مې د زړهٔ پورې جـانـان
وېم ورتـه یو څـهٔ وائي نورې جـانـان

ســـترګو له خوب به د شـــپې څنګه ورځي
اسمان کښـې ستائي راته ستوري جانان

پـه کومو ســـترګو چې ئې غلا کړې وه
اوس پـه هغو ســـترګو را ګوري جانـان

ماحول تیاره شـوه سـپوږمۍ نه ښـکاریده
بیا په رانجو کړې ســـترګې تورې جا نان

الیـاس ترې بـل وطن تـه کـډه ویوړه
اوس مې دې نـه راځې پـه لورې جـانـان

اپرېل ۲۰۰۵ کراچۍ

# غزل

څۀ غلې شانې ښکلې په مکېز لاره اوباسي
په زړۀ کښې مې دا ستا نظر چنګېز لاره اوباسي

يواځې د طبيب د دوا شرط ورله کافي نه دے
د رنځ په رغيدو کښې تل پرهېز لاره اوباسي

مونږ هغسې الف ته لوړګے وايو لګيا يو
دنيا په مشينونو ځانله تيز لاره اوباسي

راځئ چې دروازې د امن بيرته کړو پخپله
لګيا دي تباهئ له مو انګريز لاره اوباسي

هسې شل شل مه کوه الياسه شلتالو وايه
دا دور د خلۀ ورو دے سرتيز لاره اوباسي

# شاخې تاخې

شاخې تاخې راپاسیده
پګړۍ ئې په سر کېښودے
اوګے ئې ښکته بره کړے
وے ئې په دے کلي کښې
د دے کمیټۍ مشر شوم
شونډې ئې تروے کړلے
بډې ئې راپورته کړے
خان ته ئې سترګه اووله
د ځان نه په پوښتنه شو
چل دخانۍ داسې دے ؟

لد کوپړۍ راپاسېده
جرګه کښې ئې راؤدانګل
د مشر په خبرو کښې
خبرې ئې شروع کړلے
غول غوشان ئې اوخوړل
پوهه په ځان نه شولو
وے ئې زه اصلاح کوؤم
سم باډیقُلا به شو

داسې نه ده داسې ده
چل ګورے تول داسې دے
ځئ چې اوښ په بډه کړو
حل د ګرانۍ داسې دے

نو لدکوپړۍ راپاسیده
ځان له مارې داړې له
ما ته هم لګیا شوله
وے ئې تاسو څه وایئ
وایئ چې هر څه وایئ
خو دا به راته نه وایئ
چې خوشے خوۍ دې پرېږدوه

شاخۍ تاخۍ راپاسیده
شونډې ئې تروے کړلے
ځان ته ئې سترګه اووا له
د ځان نه په پوښتنه شو
چل د خانئ داسې دے ؟

کیماړي کراچۍ ۲۰۰۱

# غزل

څو په پرهر وطن خواره به وي ناشنا رنګونه
د رندو ښار له دا ځل ورمه زه بېنا رنګونه

لکه د شمعې سوزېدم خو بلېدمه ځکه
ما خوروله په تیارو کښې د رڼا رنګونه

بیا د دنیا سره په تګ کښې به تل پاتې راځي
د خپو د لاندې که مو نه کړه د انا رنګونه

چې هره ورځ ئې جنازې وړي بیګناه د کوره
پېغلې به څۀ کېږدي په لاسو د حنا رنګونه

لږ به رنګین شي د الیاس زړګیه رنګ تري واخله
جانان په سترګو کښې راوړي دي بلها رنګونه

# غزل

پرتـه لکـه حنا مې پـه ورغوي وے
دنيـا تـه بـه زَړه خو مـا تـه نوي وے

مـا لـه دې هم خـاورې ارمـانونـه کړه
خپله هم د اور په لمبو ســوي وے

مينځ کښــي به زمونږ تا ويلي چرته وو
تـه کـه هم زمـا شـــان يوه دوي وے

دومــره دي جـانــانــه دردولــے ووم
ختلي تر اســمـانـه مې بروي وے

چرتــه پرې تعويز د ملا کــار کوو
کوډې په الياس د ســترګو شــوي وے

# غزل

نزدې وے خدايه زۀ لکه رخسار د اشنا سترګو ته
رنګ به مې شيند لے وے بهار د اشنا سترګو ته

ګل ته څنګ بلبل د زړۀ حالونه په نغمو وائي
داسې مې زړګے شي په چغار د اشنا سترګو ته

ژوند مې پکښې نه ليدو د خپل زړے زړے ارمان
عبث به مې کولو انتظار د اشنا سترګو ته

ږدي به پرې قدم ملګرو لګي به ئې نظر پکښې
په اوښکو مې را اُوينځله لار د اشنا سترګو ته

دومره ئې خوارۀ په ناز او مينه را کتلي دي
ګل شولے غوټۍ ټولې ګلزار د اشنا سترګو ته

يه الياسه يو ځل که ئې ستا پله را پورته کړے
کړم به ځان لوګے لوګے او زار د اشنا سترګو ته

استونيا۔۲۰۰۸

# غزل

ســـتا په غوښـــتو ســـتا په تکل خفه ده
هره ســـلګۍ مې د ګوګل خفه ده

طمع د لیک به رانه نه ســـا تئ
تولـه دنیـا مـې پـه غـزل خفـه ده

وے ئـې د ژونـد لاره یـوه ده زمـونږ
اوس راســـره مـې پـه مـزل خـفـه ده

تـه بـه تـري هســـې مـرور وے چـرتـه
ســـتا نه په زړهٔ کښـــې یو په ســـل خفه ده

نـور ګـنـي هـرارمـان د زړهٔ پـوره دے
پـه لـؤظ هســـې د ازل خـفـه ده

ســـتـا چې د تلو ئې کلـه واوریـدلـه
الیـاســـه دنیـا دې پـه اجـل خفـه ده
وړوکے اختر طوطه کان ۱۹۹۹

# غزل

خپل پردي وي او که نه چرته کښې نور وي
ورَکوه ئې چې بې ننګه شي پيغور وي

سخت مزل د ژوندانهٔ ورته اسان شي
په دعا کښې چې رنګ بنګ سرے د مور وي

که د علم يو مشال دې چرته بل کړو
ته به نه ئې ستا به نوم په جهان خور وې

په هر لور د حق په نوم باندې جنګيږه
هابيل مهٔ شه که په مټو کښې دې زور وي

هيڅ توخه دې په عقبیٰ نشته ريا کړې
څهٔ که سر دې د خالق په در نسکور وي

چې نغمې د غم زېلي قام پرې ليکي
د الياس په قلم هاغه وخت کښې شور وي

## غزل

شــوم په عـذاب نا دا نه چرتـه لاړې
ګلا ب ګلا ب جـا نـا نـه چرتـه لاړې

ژوند تیرولو ته مې چرته پریږدي
د ژوند اسباب سامانه چرته لاړې

ما وے پوره به شے خوشــحاله به شــم
شــبا ب شــبا ب ارمانه چرتـه لاړې

درپســـې ډک لیمـه اوتر ګرځیـد م
خـا نـه خـراب درمـانـه چـرتـه لاړې

الیاس پرې اوده راویښــول غوښــتله
یـه د مـحـراب آذانـه چـرتـه لاړې

## نصیحت (ازاده قطعه)

د غصې په کیفیت کښې دا سې او شي
چې تمیز د حق باطل ســړے او نۀ کړي
فیصله د دؤو په مینځ کښې پکار نۀ ده
چې په سـترګو د جذباتو پردې راشـي

# غزل

نغمې د سترګو جوړوه راځه ستار شه راته
ځان مې لوګے کړو درته يه جانانه زار شه راته

پخوا سيالۍ وې نو هر وختې به ليدو له راتلې
د جانان غمه په تهوتې زړګي مې بار شه راته

څو به ارمان په زړۀ دننه خپل دفن ګرځوؤم
لکه بلبل را ته چغېږه په ګفتار شه راته

ستا همسري کوي نو ما به سپرلے نه رتلو؟
رنګونه اوشينده مسکے شه لږ بهار شه راته

الياس ته ئې لوړې حوصلې دې ژړه غونې لګيا
په بې وسۍ مې راشه اوژاړه غمخوار شه راته

# غزل

تير مو ژوندون په ښـــه کردار کړئ خلقـه
په پرهيز ګارو کښـــې ځان شـــمار کړئ خلقه

چې لږ پښـــتون قـام ترې عبرت وا خلي
د بې ننګۍ سوچ مې سنګسار کړئ خلقه

د ملاکنډ غرونـه ترې اوشـــرمېدۀ
مـا ئـې د لـوړه قـده زار کـړئ خـلـقـه

پســـې جرګې بوځم د ترمو اوښــکو
خفـه روان جـانـان ايســـار کړئ خلقـه

زۀ پـه غمونو کښـــې خوشـــا لـه يمه
دردونـه را کـړئ مـا آزار کـړئ خـلـقـه

زۀ د جـانـان د نـامـې ورد کـومـه
زه ليونے يم مـا پـه دار کړئ خلقـه

خوشـــالۍ ټولې کړئ جانان ته په ســـر
غم ئې زمـا پـه اوګو بـا ر کړئ خلقـه

د حق د پـاره لیونتوب مې خوښ دے
ګرېوان شـــلېدلے مې تـار تـار کړئ خلقـه

تر څو بـه وینـه مو توئیږې بې خبره بـه یو
پښتانه ویښ کړئ ځان بیدار کړئ خلقه

چې د پښتون اولس پـه ښـــه مې راشـــې
داسې سړے راله سرکار کړئ خلقه

د هـر د ورځـې روژه دار یـمـه زۀ
مـا لـه شـــربت جوړ د انـار کړئ خلقـه

الیـا س د خپـل فن د قیمت قد ر ګوري
خرڅ ئې د مصـــر پـه بـا زار کړئ خلقـه

کلکته انډیا--- ۱۲-۰۷-۲۰۱۲

# غزل

خندا ئې د سرو شونډو پرونۍ مې ياده شوې ده
هاغه د خيالونو ليونۍ مې ياده شوې ده

شپه د انتظار وه خو مزه هم پکښې ډېره وه
ادا ئې د سرو سترګو بېګانۍ مې ياده شوې ده

ګرځي مې خيالونو کښې والله چې نۀ هېرېږې مې
په خپل حسن مغروره خاپيرۍ مې ياده شوې ده

ساقي ستا د نيمګړي جام سرور مې نه خوښېږي
نشه د خپلې مستي شان ځوانۍ مې ياده شوې ده

الياس چې تا د زلفو سره خيال کښې لوبولې ؤ
بيا جوړې نن هاغه زولنۍ مې ياده شوې ده

پېښور ۱۹۹۸

# غزل

دشـــونډو په ســـر او نه کړې انکار ســـاه رانه خېژي
شـــروع کړه را ته بيا دې خوږ ګفتار ســـاه رانه خېژي

تـا زلفې پـه سـپين مخ را خورولې پـام دې نـه ؤ
زه ورو ورو ورختم ورتـه پـه دار ســـاه رانـه خېژي

خبر کړئ غمــازان تول پــه ازغو د خزان زيرے شـــئ
چـا پـېره مې ګلو نـه د ي بهـا ر ســـاه رانـه خېژي

تـا اونـه شـــيندل ها غســـې ګلونـه چې تا ويلي وو
تيريږمه نن بيا دا ســـتا په لار ســـاه رانه خېژي

تـا اونيوؤ پلو مخ تـه مـا دلتـه چغې جوړې کړې
را اوګوره په تلو کښـــې خو يو وار ســـاه رانه خېژي

الياس وايي دنيا به مې يا دګار وے ســـتا د مينې
اے کاش خوچې يوځل وے ســـتا نه زار ســـاه رانه خېژي

# غزل

ښه ده چې سپرلے راغے خزان به مې لا څه غوښتو
ځان دې را ته اوښود لو ځان به مې لا څۀ غوښتو

ستا وړه خندا راته دوا او دعا جوړه شوه
درد له د دې خوږ زړګي درمان به مې لا څۀ غوښتو

ژوند مې پکښې اوبايلو د سره پکښې تېر شومه
زلفې تا ؤ راتاؤ دې کړې زندان به مې لا څۀ غوښتو

ښه ده چې د مخکښې نه ئې ما لاره ليدلې وه
منزل ته رسېدو لره کاروان به مې لا څه غوښتو

ښه ده چې الياس هم د اسلام په منطق پوهه شو
هرې فيصلې له ملا جان به مې لا څه غوښتو

# غزل

د بنګړو شور نه ؤ ګودر نۀ ؤ
خوند په ما ښام د مازيګر نۀ وو

خدايه دا کوم محفل ته راغلمه زۀ
رقيب ليده شو خو د لبر نۀ وو

ختې ئې جوړې کړې لمده شوه زمکه
زما په اوښکو دې باور نۀ وو

د غوا په غوښه مې راضي کړو هندو
دا مې لا ژبه کښې اثر نۀ وو

ساقي څۀ له دې شړلمه نا ترسه
لا د توبې بند شوے ور نه وو

الياسه په تلو کښې ساه نيولے ښکارے
هواره لاره وه څۀ غر نۀ وو

# غزل

چې اخستې ئې ازار د هغه سترګو دے
زړه څنګــه دلــدارد هغــه ســترګو دے

طبيبا ن مې په رنځ څۀ پوهيږې خدايه
پټ خوړلےمې ګوزار د هاغه سترګو دے

خړ مخونه ائينې ئې په کتو شــوې
ما ليدلے مصر ښـا ر د هاغه ســترګو دے

د فطرت واړه رنګونه تت ښــکاري
نن مې بيا شوے ديدار د هاغه سترګو دے

ســرۀ ګلان ترې ســره شــوخي په مينه اخلي
موســيد لي جوړ بها ر د هاغه ســترګو دے

چې ګزر پرې کله کله د جانان وي
ما نيولے زړۀ په لار د هاغه ســترګو دے

چې ســازونه ئې د ژوند مســتې نغمې کړي
الياس پروت په انتظار د هاغه ســترګو دے

## مداخلت

ټول ليډران خپلې کرسۍ له ژاړي
ورانه په مونږ خلقو دنيا ښه ده

چې دا بې وسه سياست اوګورم
زړۀ ته مې راشي مارشلا ښه ده

۲۲ اپرېل ۲۰۲۲ دمام سعودي عرب

## د پښتنو په وسائلو

ملک سړے مزې کوي نواب سړے مزې کوي
زمونږ په وسائيلو د پنجاب سړے مزې کوي

دا څکه خو مو خپل بچي عربو ته ليږلي دي
زمونږ په بېوسۍ دغه جناب سړے مزې کوي

مئ ۲۰۲۲ دمام سعودي عرب

# غزل

د هجر تورو شپو زما نه ډه ډه اوکړئ
لا په سلګو یمه نغمو زما نه ډه ډه اوکړئ

ما د ظالم خلاف د جنګ اعلان په جار کړے دے
زه باغي شوے یم سرو زما نه ډه ډه اوکړئ

لا مې په سر کښې د زخمي وطن خیالونه ګرځي
د جانان زلفو او کمڅو زما نه ډه ډه اوکړئ

زهٔ د بې ننګو سره ژوند کومه ژوبل نه شئ
زما احساس زما جذبو زما نه ډه ډه اوکړئ

زهٔ د آدم بچے د خدائے د ذات قائیله یمه
اے د ابلیس شان فرشتو زما نه ډه ډه اوکړئ

زما هم خپله د دې زړهٔ خبرې سر ته خیژي
ما نه قلار شئ لیونو زما نه ډه ډه اوکړئ

تا سو د بل سندرې وایئ تاسو بل یادوئ
یه تس نس شوي پښتنو زما نه ډه ډه اوکړئ

په ما به بیا زما د ختو کور را اوڅیړي
یه د باران کږو شیبو زما نه ډه ډه اوکړئ

ستا سو الیاس ستا سو بابا د کار نه ستړے راغے
بس دے شورمه کوئ وړو زما نه ډه ډه اوکړئ

مئ ۲۰۲۲ دمام سعودی عرب

# قطعه

څنګه ئي هېر کړمه زۀ خدایه فدا یمه پرې
ساه پسې خیژي زما دومره شیدا یمه پرې

درته مي پریښے دے که دي خوښ شوے وي
زړۀ را له مه راکوه خیر دے رضا یمه پرې

ګرین ټاؤن کراچی ۲۱ ۰۷ ۲۰۰۱

# خو دا ثنګه

دا ژوند به تېروؤم بغېر د جنګه خو دا ثنګه
احساس ته زماځې راځې غورځنګه خودا ثنګه

تا خو ويئل چې رازدي د الفت ورته معلوم دے
زيړ مې شوے د يار د مخي رنګه خو دا ثنګه

مونږه په رڼا مئين رڼا کښې ځانله ژوند ګورو
په شمع دې ځان اوسيزو پتنګه خو دا ثنګه

زمونږه دغه شته کورونه وران شوله په جنګ کښې
د ډېرو په کښې بيا شوله غوا لنګه خو دا ثنګه

سوچ دې د پښتون د رورولۍ زړۀ ګړوبې کړلو
اوس هم د مينې خير غواړے ملنګه خو دا ثنګه

پګړۍ دې په سر مۀ تړه ښه نه ښکاري قسم دے
پښتونه بې پښتو شولې بې ننګه خو دا ثنګه

وئينه د ژوند په ونه مې ستا غم ده خلۀ ابښودي
او سپنه شوم مالګه کښې بې زنګه خو دا څنګه

زما د خپل اولس په بيوسۍ مازغه ګنګس دي
ستا خمار ئې پاتې کړلو بنګه خو دا څنګه

ستا خو دا شهرت زما د نوم سره پيوست ؤ
ښکارې د الياس نه په قد دنګه خو دا څنګه

مئ ۲۰۲۲ دمام سعودي عرب

# احساس برتري(هائيکو)

د برترۍ د احساس بيخ دې اوځي
په بعضې خلقو داسې لوبې اوکړي
ځان ته پخپله بالختونه ايږدي

# غزل

په کرات او په مرات ننداره اوکړي
لوئ ولي د کرامات ننداره اوکړي

لږ ساعت له چې د ژبې نه منکر شي
آئينه کښې دې د ذات ننداره اوکړي

په طواف کښې د ريا سوچ دې ظالمه
په کعبه کښې د منات ننداره اوکړي

غزنوي چې سومنات وو ځنګ ليدلے
خيال مې داسې د جذبات ننداره اوکړي

بد قسمته د چيل خوږ باندې لاهو شي
خوش قسمه د تيرات ننداره اوکړي

هاغه خلق چې يورپ ته بښکلے وائي
چرته يو ځل دې د سوات ننداره اوکړي

د غريب ســـړي غوري، کښــې پوتړې نه وي
څوک دې چرتــه د خيرات ننـداره اوکړي

د فـاني دنيـا فـاني خيـا لونـه هير کړي
چې الياس ئې د صــفات ننداره اوکړي

## (قطعه)

څۀ له مې دنيا ته د زړۀ راز اووې
ځان سره د ځان خبرې نه کيږي ؟
هسې خلق وائي مخکښې نه شے تلے
په زمکه د اسمان خبرې نۀ کيږي ؟

## (قطعه)

راځئ چې دغه قام لره پخپله هم څه اوکړو
تر څو پورې قيصے به د خپل پلار نيکه کوؤ
غلطه خو څه نه کوؤ متل د مشرانو دې
مطلب پوره کيدو له چې حمار نيکه کوؤ

# (هائیکو نما نظم)

زمونږ اصلي دشمنان دا خلق دي
ځوک چې ډالر اخلي پښتون وژني
نو خدایه د هغو وزرې اوسیزه

هسې د عوے د مسیحا کوي خو
مونږ له په ګرانۍ ئې ځرمن اوویسته
خدایه لږ د دو وزرې اوسیزه

زمکه ئې پرېښودې په هوا ګرځي
ستا په شانې زه هم ورته قار یمه
خدایه د میږو وزرې اوسیزه

ورکه دې شي دغه ستړي خؤشي ده
درد چې داولس پکښې بیان نه شي
خدایه د زبیرګو وزرې اوسیزه

راغونډ چې د پښتون په بربادۍ شي نو
زه ئې په الوت خوشحاله نه یمه
خدایه د جرګو وزرې اوسیزه

# مخ نیوے (ازاد نظم)

دا نن چې وینم د نفرت نه ډکې
سترګې د غیرو دوطن په لورې
په دے یربړم لیونو ملګرو
چرته قاتل مو د ګلزار نه شي

هسې نه واخلي دا چمن زمونږ نه
هسې نه واخلي دا وطن زمونږ نه

لږ خو د دې هم مخ نیوے پکار دے

دا نن چې وینم د وطن دپیغلو
سرتور سرونه لوپټې شلیدلې
پراته په وینو کښې لت پت ملګرو
دا نن چې وینم بې ګناه سرونه

هسې نه بیا مو بندیوان جوړ کړي
هسې نه بیا مو غلامان جوړ کړي

لږ خو د دې هم مخ نیوے پکار دے

دې هــم زمــونــږه د ټــولــنــو زیــلــې
تــر ډېــره حــده کــوکــلــه کــړي دي
دا نــن چې وینـم د وطـن زلـمو کښــې
زه د نشـــو دا کــاروبــار مــلــګــرو

یــریــږم جــوړ راتــه نــقصـــان نــه شـــي
اختــه پــه دے لعنـت ځوانـان نـه شـــي

لږ خو د دې هم مخ نیوے پکار دے

کیماړی کراچی (نومبر ۲۰۰۱)

## قطعه

ځنګه به ځوک یاد کړمه هرچا د یاده اوویســـتم
نیمګړے نیمه خوا شــومه دنیا د یاده اوویســـتم
زه هم ګني تا له درروان وومه ســـتا مینې له
بس خو خپل غرض لالچ ســوداد یاده اوویســـتم

# نوې جذبې

د خپل بچي د خوشالۍ د پاره
چې دغریب په مخ سپېڅلې وهې
زه د نرۍ د جابرانو خلاف
دا ځل ورځمه احتجاج کوؤمه

د قام اولس به ترې پوښتنه کوؤم
زۀ به دنیا سره ډغرې وهم
د قلم زور به مې ملګرے وي
په پښتنه خاوره به راج کوؤمه

د پلار نیکه نخښې ژوندۍ ساتو
مونږ د پښتون په کورکښې ساه اخلو
پریږدئ که هر څۀ راپیښیږې خو
نن ئې پوښتنه د مزاج کوؤمه

چې دا مونږ ولې مخ په ښکته لاړو
نن مې پښتون احساس په چغو شولو
وا ئې که چرته مې خامۍ اوو ینم
په آئینه کښې د ځان جاج کوؤمه

نظر مې ته‌یټ ساتمه ستا د مخې
ما ته مې مینې احترام ښودلے
ګنې پښتون یم په هر څه پوهېږم
ستا د غرور به زه علاج کوؤمه

داستا په کور کښې چې کندوان ډک دي
دا درله ما خانه ریبلې وو ته‌ول
ستا د پټې په رشه څه کوؤمه
غریب سړے یم ځانله بیاج کوؤمه

دا لیونتوب مې په تا سود نه شي
څیرې ګریوان درله ګنډمه اشنا
څومره خوږمنه وه زما مینه
وېئل ئې جاموکښې درله کاج کوؤمه

# زلمو ته

د جبر په زنځير د خپل اختيار چغي او نه ترړئ
خپله د وطن دستور مات په بل راحيل نه کړئ

ورک به شئ فنا يه پښتنو ځانونه پوهه کړئ
مشر د وطن چرته د خپل ارمان قاتل نه کړئ

خپلې فايدې له ټول روا کړي ناروا د دنيا
ماته د ګمراهه ملا ياد هاغه دليل نه کړئ

امن لکه ناوې به په سرۀ ډولۍ کښې راولو
قتل په قابيل راله بيا چرته هابيل نه کړئ

# د مور په نوم

عمر نصـــیب دې شــه د ډېرې زندګۍ مورې
دعـا کوم خـدائے دې همېش لره ژونـدۍ مورې

مـنـم چې ســـتـا د ســـترګو تـور یـمـه زۀ
هــم دې د خــورې زړګــي ټــکــوریــمــه زۀ
د پــاکــې مــیــنــې پــه خــوږه غــیــږه کښـــې
تــا ګــرځـولے پــه هــر لــور یــمــه زۀ

الله دې تل لره هر ځائے کښــې په سـیالۍ مورې
دعا کوم خدائي دې همیش لره ژوندۍ مورې
پـه هـر خـفـګـان چې ژړیـدې بـه مـې تـۀ
هم پـه ســیـالۍ خوشـــالیدے به مې تۀ
هـاغـه خـواږه وخـتـونـه ښـنـګـه هـېـر کـړم
پـه هـر قـدم چـې زاریـدې بـه مـې تـه
زیرے راوړم تـا لـه د خپلې کـامـیابۍ مورې
دعـا کوم خدائي دی همیش لره ژونـدۍ مورې
خـدائے تـه مې لاس چوت کړه منـت کوؤمـه
تا له ترې ســوال ســتا د صـحت کوؤمه
دا زمـا حق دې چې ادا ئې کـړمـه
ځـه بـه پـه ژونـد درلـه خـدمـت کوؤمـه

دا ســـتا مقام دے پس د رب د بندګۍ موريږ
دعـا کوم خدائے دې همېش لره ژونـدۍ موريږ

تـا پـه هـرځـائـے کـړے خـدمـت دے زمـا
ځکـه سـتـائيـل دا سـتـا عـادت دے زمـا
هـر يـو قـدم دې ښـــکـلـوؤم پـه ميـنـه
دا ســـتـا د خـپـو لانـدې جـنـت دے زمـا

زار شـه له تا نه مې د ژوند واړه سـلګۍ موريږ
دعا کوم خدائي دې هميش لره ژوندۍ موريږ

حيات اباد ميډيکل کمپلېکس پېښور
(۱۰ نومبر ۱۹۹۸)

## قطعه

غم مې خنـديـدو لـيـدو ارمـان مې رژيـدو لـيـدو
دا مې جوړ نظر ســتا پـه نظر کښـــې ډوبېدو ليدو

ما چې د ريا تســبې د ژوند په جام کښـــې ډوبې کړې
شـيخ به شـونډې پټې کړې سـاقي مې موسيدو ليدو

# غزل

سر که په در نه کړم نسکور د جانان
پورې کړئ هله په ما تور د جانان

په شپه کښې ستورې ورځ کښې نمر پړقیږي
رنګ دے په هر اړخ راخور د جانان

لوئ دے بې نیازه دے په هر څه خبر
په یو ساعت کښې جوړ شي شور د جانان

اوږې مې هسې ښکته نه وړے ورته
خوښ دے زما هم ساندې سور د جانان

ورځمه اوښکې پسې وړمه جرګې
الیاس ته معلوم دے خلقه زور د جانان

# غزل

نن بیا مې یو پښـتون سـړے په غم لیدلے دے
پـه ویر لیـدلے دے مونږ پـه مـاتم لیـدلے دے

راځئ چې پسې یو ځائے د ګلشن تپوس له ورشو
ما وران د چوکیدار سـړې خړتم لیدلے دے

نیت ته به ئې ګورو چې د ښـو دے کۀ د بدو
رقیب مې نن د ښـکلې یار په چم لیدلے دے

شـیخ پسـې غریب د کتابونو پاڼې خیري کړې
ما ښـکلې نظارو کښـې د میاندم لیدلے دے

خوددار به ئے زړګیه خودا ځائي د ټیټیدو دے
ما سـر ورته سـجدو کښـې د آدم لیدلے دے

الیاس دې هم د رحم طلبګار دي لویه خدایه
ما اوور کښـې په خلیل دا سـتا کرم لیدلے دے

جبل علي متحده عرب امارات
۱۹ ۰۳ ۲۰۰۲

# غزل

دا ولې دومره ښـــکارې پرېشـــا نه څۀ چل دے
نن غلے راتـه ګورې يـه جـانـانـه څـۀ چل دے

ګنـاه مې اخير څـۀ ده خطـا کومـه رانـه شـــوي
تنـد ے دي ترېوۀ نيولے د بيګـا نـه څۀ چل دے

د مخکښــــې نـه د زلفو پـه تـارونو ئې ترلے يم
ســلاخ کښـــې مې بند ے ولې زندانه څۀ چل دے

راځه خير د ے پوښــتنې له مې راشـه پښــتنې
په لار کښـــې اودريدلې ئې حيرانه څۀ چل دے

ســـترګې د غصـــې نۀ دي نن ســرې را ته نيولي
دا بيـا چـا لمســـولے ئے نـادانـه څـۀ چل دے

تـا هم جوړې خنـدا چرتـه ليـدلي د جـانـان ده
غـورزو ے چې تندرونه يه اســـمانه څه چل دے

ما خو د منزل پورې د تلو خبره کړې وه
واپس شوے نیمه لاره کښې کاروانه څۀ چل دے

الیاسه زر کړه اووایه مستي که لیونتوب دے
شین شے کله کله د خندا نه څه چل دے

موزمبیق افریقه ۲۰۰۵

# قطعه

چې اختیار ئې ؤ په لاس کښې خاماران وو
اوس چې پرېږدي نو په ما باندې جرګه شوه

ننګیالو له زړۀ کښې ځائې ورکړه الیاسه
په کتاب کښې دې بې ننګه ژوندي مړه شوه

○

زما د مینې سوچ باغې ګنې سوکئ پرې کوي
دوئې په رڼا ورځې په لاسو کښې قانون اخستے

داسې څوک نشته چې دَ دوئ ګریوان ته لاس واچوي
دوئې مې د هر ارمان د هرې جذبے خون اخستے

د دوئې د جبر مخ نیوے به په قلم کومه
دوئې مې د ژوند نه د سیالئ هاغه سکون اخستے

ورته مې ویئلي دي چې نور جنګونه مهٔ جوړوئ
دوئې پکښې ما نه د لقمان نه پس هارون اخستے

## د رے شعرونه

خپله زهٔ قاتل شومه د خپل ارمان
ځان مې د مینې په ژواک پوهه نه کړو

ځان ته هوښیار د زمانې ویمه خو
خر مې د خِد په خوراک پوهه نه کړو

واک به الیاس څنګه د نورو اوکړي
خپلو پخپله په واک پوهه نه کړو

# خواږه تراخه (ازاد نظم)

دلته کښې لفظ د انصاف څۀ کوي
دا خو سماج د څو غټانو ښکاري
دلته خو راج د نوابانو ښکاري
اخير کوم ځائې په سلګو شم
اخير چا ته په ژړا شم
غريو مې اونيسې خالقه
چې په تَله په ميزان کښې
د غماز برخه درنه اووينم
زړۀ مې راډک شي د خفګانه هلته
بل چې د جبر دغه حال اووينم
چې د غربت پورې ملنډې کوي
زر ورته اووايم په چغو چغو
چې واؤره اے زما د قام رهبره
واؤره په جار ئې درته وايمه چې
چرته که ستا شانې سپين روبي خلق
د خپل نيازبين لورکۍ د پاره ځانله
زما د وطن د بې اسرے پيغلو
په وړو لاسو پاکوي غوجلې

نو د زړهٔ څړیکې مې په چغو سر شې
چې یه زما قامه زما خپل اولسه
تاسو که خپلې خوئېندې ګڼې ځانله
چې دا لوریانې دنواب صیب دي
نو یه زما قامه زما خپل اولسه
زهٔ هم دا خپلې بې اسرے پیغلې
د حیا ډکې مېلمنې پېغلې
د غېرت ډکې پښتنې پېغلې
د چا نه‌کمې په ښائیست نه ګڼم
ځکه خو وایم چې انصاف پکار دے
ځکه خو وایم چې نواب صاحبه
پردے بچے که دې غریب اولیدو
ورسره یه صاحبه مینه اوکړه
چې نور ئې دلته استحصال اونه شي

هائ فونګ-- ویت نام
۵ جنوري ۲۰۰۳.

# ملا

چې قدرتي ملا شي
نو جذباتي ملا شي
دلته چې ږیره پرېږدي
بس نو ښېخي ملا شي
ځانته حرام روا کړي
غټ بدعتي ملا شي
په تندر اونه ولې
چې درباري ملا شي
مونځ پسې نه دے پکار
چې بازارې ملا شي
غریب ته سم تکړه وي
خان ته جوتې ملا شي
رباب کباب نۀ غواړي
حلوا پیتي ملا شي
د پارلیمنټ وزیر وي
چې قسمتي ملا شي

# غزل

ځنګ ئې د تلو ځنګ د راتلو قیصه وه
په ګران وطن کښې مې د غلو قیصه وه

مونږه ئې تش په اوریدو نشه کړو
بیا د شرابو د شوملو قیصه وه

نازک ګلان پکښې پرهر پرهر شو
دا لا زمونږه د سپرلو قیصه وه

پښتون اولس مې پکښې پاتې راغے
چې د کوپړۍ او د مازغو قیصه وه

مونږ لیونو پکښې سرونه بائیلل
چې د ګلشن د ورانیدو قیصه وه

ځان سره تول اولس ئې ؤژړوؤ
په غوڅه ژبه د لېمو قیصه وه

مونږ ئې په جار مخې ته اونه در بدو
چې د پښتون د قتلېدو قیصه وه

الیاس پکښې ځکه پښتۍ ماتې کړلے
خدا یه پښتونۀ د پښتو قیصه وه

راس الخیر سعودي عرب
۲۰ اګست ۲۰۲۲

# قطعه

سوچ پرې اول نه کوۀ کار اوکړو بیا ژړل کوۀ
د خره دماغ مو دي په خره باندې وژل کوۀ
په عقل مو خادر د جهل خور دے لا تر اوسه
ځان ته د جمود په ائینه کښې ځنګ کتل کوۀ

<u>**یادګیرنه**</u>:- افغانستان کښې یوجمات ته د خر په ورننوتو د **۵۱** کسانو د وژل کیدو د خبر په اوریدو -------- **۱۴** ستمبر **۲۰۲۲** دمام

# غزل

ژوند مې کوؤ ژونده ستا په رنګ چلونه ښۀ راتله
چپه لکه دریاب کښې د غورځنګ چلونه ښۀ راتله

ما ورته د امن د خاطره لیمه ښکته کړه
نورګنې په سترګو کښې د جنګ چلونه ښۀ راتله

تا رانه په ټولو کښې په چل دا زړګے وړے وو
دا راله په مینه کښې لا ځنګ چلونه ښۀ راتله

تا راته ملا صیبه وئیله ګناهګار به شے
ما له په رباب ګنې د ترنګ چلونه ښۀ راتله

غلے به شو ستا چې بے رخي به ئې رایاده کړه
الیاس له ستا په سر ګنې د ننګ چلونه ښۀ راتله

ستمبر ۲۰۲۲ دمام سعودي عرب

# غزل

منزل ته بوځه مې کاروان جوړ شه
زما لاربنود شه مهربان جوړ شه

زما د زړهٔ د ارمانونو خاورې
ؤخانده ګل شه ګلستان جوړ شه

زما د زړهٔ د پرهر ونو پټۍ
ځان مسیحا کړه لږ درمان جوړ شه

زما د وران زړهٔ د محل بناپیرۍ
ځلیږه ستورے د اسمان جوړ شه

په پښتونخوا بل شوې اور مړ کړه
وریږه څاڅکے د باران جوړ شه

زما د مینې قدر اوکړه اشنا
زما ژوندون زما جانان جوړ شه

راشه چې زه غزل غزل شم پکښې
راشه ټپه شه په قربان جوړ شه

یا مې په خیال کښې هډو رانه شې
یا راشه شعر مې د دیوان جوړ شه

جوړ شه خوشحال توره د ننګ واخله
یا سم ملنګ عبدالرحمن جوړ شه

بل کړه مشال د پښتنو په سیمه
یو نر سپاهي د باچا خان جوړ شه

ځان لیونے کړه فلسفو کښې ډوب شه
الیاسه ورشه غني خان جوړ شه

قیوم منزل (هاسټل)
اسلامیه کالج پیښور
۱۵ فروري ۱۹۹۹

## پښتون يمه افغان يمه

څـور زه په مزغو د درست جهان يمه
درون يمه پښتون يمه افغان يمه

پرېږدئ د سپوږمۍ ذکر به بيا اوکړم*
لا په تماشو ئې د چشمان يمه

خدايه نو په دے ګناه مې مه نيسه
زه به خطا شوے يم انسان يمه

بيا د چا خائست مې سترګو اوليدو
دا ځکه اوتر شومه حيران يمه

دا مې ګمان دے پښتانه به يو شي
اوګورئ زه څومره بدګمان يمه*

وايم که زرغون د امن فصل شی
پرېږدئ چې ورېږمه باران يمه

ځان مې د سائيل غزل کښې اوليدو
زه خپله مضمون خپله عنوان يمه *

اوګورئ پردو پسې روان دې ټول
زه په خپل اولس کښې پريشان يمه

نن راته دانش مې غوږ کښې اوويل
کلک په عقيده کښې مسلمان يمه

ځانته خو مې خاورې ايرې ويئلې دي
ستا د پاره خير که پاس اسمان يمه

امن له مې بيا ټپې ليکلې دي
ځکه خو الياس په هر چا ګران يمه

۱۷اکتوبر۲۰۲۲ دمام سعودي عرب

* د حمزه بابا , جون ايليا او د رحمت شاه سائل
د خيال محتاجه يم

# غزل

وژني مو ملګرو په صلا ده مخکښې ناسته
د ژوند په هر ډګر راته بلا ده مخکښې ناسته

ښکاري چا ئې بیا د ارمانونو قتل کړے دے
دا پیغله چې سرتوره په ژړا ده مخکښې ناسته

دا مونږه پښتانه چې نه یو کیږو داسې ښکاري
خپسه په فکرونو مو ریښتیا ده مخکښې ناسته

دا خلق به هم چرته د خپل حق د پاره پاڅې ؟
په سر کښې مې پرته دغه سودا ده مخکښې ناسته

د جنګ شانې ماحول ورته خائسته کړه په سندرو
الیاسه تخیل کښې دې ښکلا ده مخکښې ناسته

۲۲ اکتوبر ۲۰۲۲ دمام

# په ښارِنا پرسان کېږي

چې دا عالم په څۀ دے
او سیدالم په څۀ دے
دشمن چیچلے نه شي
مار او لړم په څۀ دے
دا بوډۍ ولې ژاړي
دلته ماتم په څۀ دے
ما دا تپوس کولو
وران دغه چم په څۀ دے
خو چا څه نه ویئله
دلته دا غم په څۀ دے
ځان ته فرعون وائي
ځوے د آدم په څۀ دے
د یو بل وینې ته ناست
دغه تورتم په څۀ دے
زمونږ عزت نه کوي او
دے محترم په څۀ دے
مونږه خواره واره کړي
دے منظم په څۀ دے

راته ئې کور په کور
ایښې دا بم په څۀ دے
د خدائ په کور کښې راشئ
شور د صنم په څۀ دے
د قام په کار دې راشې
زما نه کم په څۀ دے
چې خبر خور نه کړي
ناظر او ډم په څۀ دے
خلق مې ویښ نه کړله
زما قلم په څۀ دے
الیاس ته کوږ وائې
دے چې لا سم په څۀ دے

۹نومبر۲۰۲۲ دمام سعودي عرب

# وزيراعظم ته د جانان خط

## (هائيکو)

خط کښې مې جانان داسې ليکلې دي
ځان له بندوبست اوکړه څه چل اوکړه
خلق درپسے دی نور دی نه پرېږدی

۳۰ مارچ ۲۰۲۲
دمام سعودي عرب

## ويښ شئ

په وطن جنګ دے شاه زلمو ويښ شئ
ويښ شئ ملګرو پښتنو ويښ شئ
تاسو نه اخلي خپل اختيار د خاورې
تاسو ته وايم لېونو ويښ شئ

# یادګیرنه

کتاب کښې ځائې په ځائې علاقائي ټکې استعمال شوي دي-هیله لرم چې دا به زمونږ د مورنۍ ژبې پښتو لمن نوره هم فراخه کړي

محمد الیاس

# درنا رنګونه



که د علم یو مشال دې چرته بل کړو
ته به نه یې ستا به نوم په جهان خوروي

محمد الیاس

Cover Design
SAJJAD ROGHANI